Feb

Mar




# کندهار

اطلاعات او کلتور

د ۱۳۵۲ لمریز کال
سلواغه او کب
یوولسمه او دولسمه گڼه
د تاسیس کال ۱۳۳۹

د دولت رئیس او صدر اعظم ښاغلی محمد داؤد کله چې د ولایاتو د اطلاعاتو او کلتور آمران یې منلی دی



# د وطنپرستۍ روحیه

د اطلاعاتو او کلتور وزارت د هیواد د فرهنګي تنظیم په منظور د جدي د میاشتې په وروستۍ هفته کې د ولایاتو د اطلاعاتو او کلتور د مدیرانو سمینار جوړ کړ.

د دغه سمینار په پای کې چې د دلوې د میاشتې د لومړي یوو رخو سره برابره وه د دغه سمینار غړي د دولت د رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد په لیدلو بریالي سول.

زموږ د جمهوري انقلاب رهبر او ملي پېشوا هغه مهال چې یې د ولایاتو د اطلاعاتو او کلتور مدیران مخاطب کړل نو ده یو او د مهمو جریاناتو او د جمهوري انقلاب د لویو امورو په باب یې هغوی ته لویې لارښوونې وکړې.

حقیقت خو دا دی چې په دغه لحظه کې چې موږ د خپل با افتخاره تاریخ په ورځ اندې د یوه لوی تحول بېلامه ایښې ده او جمهوري انقلاب تر عنوان لاندې خپلو راتلونکو نسلونو ته داسې ملي نظام په میراث پرېږدو چې د هغه په وسیله به د حاضر او سبا نسلونو په برخه ملي عزت او ښه ژوند نصیب کړي.

د ملي مشر او ستر رهبر په وصایاوو کې دا جمله چې موږ باید د واقعبینو انسانانو په حیث د وطن پرستۍ په روحیه د وطن خدمت ته حاضر سو د ډیرو لویو مفاهیمو درلودونکی یو درس دی.

دا واقعیت موږ هیڅکله نه هېروو چې د حاضر ستر انقلاب ښېګڼې او پایښت د وطنپرستۍ د روحیې په درلودلو ممکن او میسر کېږي.

زموږ ملي پېشوا د یو حاذق طبیب په حیث دا توصیه وکړه چې دغه عالي احساس ته به په خپلو رګو او وینو کې ځای ورکړو.

موږ لوړ د تاریخ لویو تکانونو دا بیدار کړي یو او هغه نفس چې موږ سیمې په تاریخ کې هر وخت درلودلی دی دا دي اوس موږ د جمهوري انقلاب په قیام یو ځل بیا

د دې سیمې په دوران ساز جریاناتو کې فعاله برخه واخیستله او دا حقیقت موږ کاملاً منلی دی چې زموږ ان تر پرون بهتر او سبا به موږ تر ان هم بهتر وي.

دا د تاریخ درس دی چې موږ د خپل سیاسي او اجتماعي موقف په حکم پر هغه لار روان سوي یو چې په هغه کې یوه ځلانده آینده پرته ده.

د هغې ورځې څخه چې په هیواد کې د جمهوریت انقلاب بلوشی خبرې کړې یې دې نو هرې خوا ته موږ د یو شکوفان ژوند هر کلی کوو.

توره توره شپه پای ته ورسېدلې ده او سپین سبا ته راوتلي یو.

موږ چې څومره د حاضر انقلاب په استفاده د هیواد دوداني له پاره فکر کوو نو دا له یاده نه باسو چې د هیواد په اقتصادي او اجتماعي اوضاع کې هغه وخت بریالي کېدای سو چې د نظر او عمل وحدت د وطنپرستۍ په روحیه په ځان او ټولنه کې خلق کړو.

دا د ملي مشر او ستر زعیم لویه فرهنګي دوستي ده چې د هیواد د اطلاعاتو او کلتور آمریتونو ته یې دا فرصت ورکړ چې د خپل ملي پېشوا او دوران ساز افکارو څخه د نږدې څخه خبر سي.

موږ په دې باور لرو چې د هیواد روشنفکران او منورین په خپلو مکلفیتونو ښه پوهېږي او دا حقیقت نور کاملاً هرګند سوی دی چې موږ د خپل اجتماعي انقلاب په حساسه مرحله کې واقع یو او په دغه وخت کې هغه فکر او عمل مطلوب بلل کېږي چې په مترقي شیوه د وطنپرستۍ په احساس د یووالي خوا ته متوجه او سوق سي.

د تاریخ او ټولنې په حکم د هیواد د فرهنګ خدمتګاران دا خپل لوی ویاړ بولي چې د خپل ملي مشر تر لارښوونې لاندې د خپلې ټولنې فرهنګي خدمت ته د وطنپرستۍ په عالي روحیه حاضر یږي او یوه ځلانده آینده استقبالوي.

(دم-عطایی لیکنه)

# کلابست

## په افسانه او تاریخ کښې

کلابست د هلمند د ولایت د مرکز لښکرګاه څلور جنوب ختیځ خوا ته پر تقریباً اتلس کیلو متری واقع دی.

دلته، قدیم بست دار (ښار) که او یه کنډوالې پرته ده، چې مخې ته یې د بست کمان ولاړ دی.

په اوس کې یوازې پر دغه ځای د بست اطلاق کیږي په داسې حال کې چې په تاریخ کې بست پر

پراخه سیمه ده چې د اوسني لښکرګاه په ګډون تر ګرمسیل پورې او هم پیدا او قدیمو جغرا-

فیا لیکوالو هغه د زمینداور او سیستان تر منځ معرفي کړیده.

دغه سیمه د تاریخ او افسانې له لحاظه ډېره غني ده او سر بېره پر دې چې ډېرو مهمو تاریخي پېښو او قعاتو شاهده ده د فولکلور له لحاظه هم ارزښتناک مطلوبه لري د مثال په ډول په پښتو فولکلور کې د (فتح خان و ارابیا) داستان چې د یوې ملي حماسې حکم لري په دغه ځای کې پېښه شویده.

دا کیسه که څه هم افسانوي رنګ لري خو د یوه کتور هو کو ددې خبرې په استثنا چې تاریخ په افسانه کې دی او افسانه په تاریخ کې ده نوموړې له دغې افساني څخه د تاریخي واقعاتو د یوې مرحلې هغه شکل پیژندلی شو چې جوړوونه یې په خلکو پورې اړه لري.

په دې لنډه څېړنه کې به د بست د ولسي تاریخ په اړخ کې ددې ملي حماسي فولکلوریک او هنري ارزښتو له هم په مختصر ډول تر څېړنې لاندې ونیسو.

## د فتح خان کیسه د څه وخت ده؟

داسې ښکاري او د دې د کیسې ماجرا کوم معلوم تاریخ نه لري خو هر ګڼه چې په کیسه کې فتح خان د بست د پاچا دزوی په نامه یاد شوی او د بست، له تاریخ څخه د دغه کیسې د وخت یو تخمیني حکم سړی ته اجازه ورکوي داسې چې بست، د اسلامي سني په لومړیو وختو کې هم داسې ښار نو چې اسلامي مورخین یې د ثقافتي مرکز په حیث پیژني.

د ښار په سیاسي او غزنوي دوره کې یوا بات ښار ژو هغه وخت چې غور ري جهان سوز علاؤ الدین د غزنوي ودانیو دو دانو او په لړ کې د ښار ودان کړ نو بیخي له منځه ولاړ.

وروسته بیا د چنګیز او تیمور ښیا وتو که څه هم ودان کړ خو بیخي یې خاموشه نکړ او د تیمور زوی شاهرخ (۸۰۷-۸۵۰) کې دا ښار بیرته ودان کړ او سکه یې هم پکښې ووهل سو. تر دغه وروسته نو بست ورورو متروک سو څو تن د یوې مطلقې کنډوالې په ډول تر نظر چلېږي.

د فتح خان پېښې په کیسه کې باید لومړی د اروښتو چې هغه تر اسلام د اوروسته یوه پېښه ده ځکه د کیسې د قهرمان، فتح خان، او ددې کیسې د نورو خلکو نومونه نو له عربي دي او عربي نومونه هم د اسلام تر راتګ وروسته رواج سوي دي.

په کیسه کې چې فتح خان د بست د پاچا، اسلم خان، زوی په نامه یادیږي او د بست په معلوم تاریخ کې د اسلم خان په نامه کوم پاچا نه دی یاد سوی ددې خبرې څخه نو د انتیجه باسو چې دا کیسه په ملوک الطوایفي، قبیلوي مرحله کې پېښه سویده ددې ځای په تاریخ کې ملوک الطوایفي مرحله هغه وخت د ښه

چې د غزنوي امپراطورۍ څخه
وروسته د چنګیز او تیمور چپاولونه
او غلل او د مملکت شیرازه
یې سره وشلوله.
په کیسه کې د هندوستان ته
د فتح خان او شپېتو پښو تګ
او هلته د شمس الدین باچا سره
د دوی جګړې او د (مغلو) ذکر
د دې حکم تائید کوي چې تر غزنوي
دورې وروسته بیا هم د دوی ځای
او هندوستان رابطه نه شلېدې
د دې ځای خانان چه کوچني کوچني
باچاهان وه اکثره د هندوستان
سره یې ونډه ګاوې لرې او د هندوستان
باچا په کیسه کې د شمس الدین په
نامه یاد شوی دی نو د کیسې له ماجرا
څخه هم د ملوک الطوایفۍ
مرحلې یو لوی خان یا کوچنی
باچا دی دا کیسه (د فتح خان پښتنې)
په نامه یادېږي او پښتنه څخه پښتني
قبیله ده چې همدا اوس یې هم نوم
پښتنې دي او نه یوازې د بست په
شاوخوا کلیو کې د دې قبیلې
خلګ اوسي بلکه له چخانسور څخه
نیولې تر سپین بولدک پورې د
جنوبي خواوو ریګي صحراوي او
د هلمند او ارغنداب د سیند په
حوزو کې دا قبیله تیته شوې ده.
د پورتنۍ څېړنې په نتیجه کې
باید حکم درست ری چې دا ستره
حماسي کیسه د اسلامي دورې څخه
وروسته وبولو او په ملوک‌ـ
ـالطوایفي مرحله کې یې وخت
د تیمور تر دوراني وروسته وګڼو.

د دې کیسې د وخت په باره
کې څېړني لیکوال خیال کوي چې
دا کیسه تر اسلام پخوا واقع شوې ده
ولې چې (هیلبرانټ) وايي دي چې
په ریګویدا کې والی په دارا-
کوسیا، کندهار کې یو باچا و
چې (واسودیوا) نومېده او د هغه
زوی (سوداس) بر هند حمله وکړه
او هلته یې ډېر فتوحات وکړل خو
دا قول ځکه چې له هر لحاظه د کیسې
د ماجرا سره اړخ نه لګوي نو د
څېړلو ضرورت یې هم نشته.

## د فتح خان د کیسې هنري اړخ:

دا کیسه چې یو واقعي حماسي
اثر دی د هنر په لحاظ له دلنډي تخیل
څخه تجاوز نه کوي د کیسې قهرمان
(هیرو) او نور د کیسې خلک او
صحنه ګرده یو واقعي خیال سره
هم آهنګي لري.
کیسه په سر کې یو قهرمان
(هیرو) او یوه قهرمانه (هیروینه)
لري چې د داستان له ابتدا څخه
تر پایه د کیسې ټوله ماجرا پر
راڅرخي.
په دې کیسه کې پرسېره پردې
چې صحنه یې د غیرت او شجاعت
د مبارزې ډګر دی یوه داسې مینه
هم شتون لري چې د ماجرا جوړه او
زړه و ډه و څو انا نو
سره ځای د کیسې نورغړي هر یو
په خپل وار د شجاعت او زړه
ورتوب وظیفه اجرا کوي او د
کیسې نتیجه پر داسې نقطه خلاصېږي

چه د ازادۍ او وطنپالنې احساسات
تلقینوي.

## د کیسې لنډیز:

په پخوا زمانو کې یو باچا و
چه اسلم خان نومېده او په بست
کې یې باچهي کوله ده یو وزیر
درلود، خو نه ده او نه یې وزیر
زوی درلود.
یوه ورځ د باچا د حرم سراي
سره یو ملنګ ودرېداو د باچاهي
کهول څخه یې خېر طلب کړ
د باچا مایندې خیرات سره ورمینځې
ته یې په لاس ورکړ چه ملنګ ته وا
خیر ملګرو پسته ډېر خیرا تو ته مو
ورکړل خو ما او باچا ته خدای
زوی ورنه کړ ... مینځې چه ملنګ
ته ورغله هغه خپله لګړه ورکړه
چه د سیب دره څخه دي پورمي چې
هر څو دانې دا ولو یدې یوه یوه
دانه دي و خوري خدای به زوی
ورکړي او دا نو سیب چې مو. پر هر چا
پورې ورکړي.
د باچا مایندې دا کار وکړ او
دا لو یدلی شپېږ دانې سیب د باچا په
حضور کې د کوډنۍ ټولو ښځو ته وېشل
سره باچاه د باچا مایندې او سربېره
وخوړل او د وزیر کره یې هم ورولېږل
په دغه شپه چې یو ځای سره د کوډنۍ
ټوله غوا اناتې شنګې البې (حمله داده)
شوی او پرخپل وخت هر یوه یو زوی
وزېږاوه خو د وزیر مایندې چې ترسیب
پخوا برا لېږه و نو د امهال غیر که لنګه
سره یوځای زوی او یوه لور دوزېږوله
باچا د اصلي مایندې پر زوی د فتح خان ☆

✿ او د سربېڅي پرزوی د (کرم خان) نومونه کښېښودل، همدا شان وزیر پرخپل زوی د (پردل) او پر اوړی د (دابیا) نوم کېښود.

دا شپېته کوچنیان چې د هندو له غېږې دا ووتل نو په وطن کې نازولي هلوکان وه دوی ډېر له پوهای گرزېدل او پوهای ئې لوستوایه.

همیشه به ئې مستي کوله او هغه وخت چې هلمیان ځنې جوړه سوي وه بوه ورځ فتح خان د سیند پرگودر د بهوزي دلیندی په نښان ورد کړه او په غشوئي هغه سوری کړه، ښځې پاچا ته چې د عدالت مرجع وه ورغلې او عرض ئې ورته وکړ. پاچا چې فتح خان ته یو کو ځنې قهر و کړ هغه خوابدی سو او د ښار څخه ئې دو تلو ایت وکړ.

د فتح خان فیصله چې نورو (۵۹) ملگرو هم زولو و منله او یوه شپه پر سنتو اسانو د ښاره داووتل او مخ د هندوستان پرخوا ئې سوه دوزیر د لور (دابیا) او فتح خان ترمنځ د ملکتوب او تجلی توب له وخته آشنایي وه او یو پر بل مین وه او هغه هم د فتح خان سره ملگری سوه.

له دغه ځایه (دابیا) سر بېره پردې چې په کیسه کښې د یوه ماجرا جو په عشق دول بازي کوي په دوله کې ئې شخصیت هینا دیوه نادبنه دول لو بوی د ماجرا جو یه خوا نادر دا چې له هندوستان ته ځي او هلته د هغه ځای د پاچا (شمس الدین) سره جنگ کوي او تر هغه وخته مجادله کوي چې ټوله مړي او یوازې (دابیا) پاتېږي او دا چې په هغه ځای کې شپېته هلمیان په تابوت کې کښېږدي نو دا ځي او کوچنیو هلو کانو او نجونو ته د هغو کیسې کوي او د غیرت سا تلو او پاللو لوست ور کوي چې باید د خلیم څخه سر ی پرشا نه سو بلکه ځان داسې قربانی کړی لکه شپېته یې یغ.

# دا دې د خپل وجدان له وپوښته

هغه وخت چې زه د خپلو بې شمیره ارزو گانو سره ستا په لور دارهی شوم. او په ډېرو سختیو می ځان ستا خواته در ورساوه نو ما غوښتل چې تا ته د خپل کباب سوی کړېدلي، او دردېدلي زړه په باب څه وو ایم ما غوښتل چې خپل پرهار پرهار زړه و تا ته رښیم او بالاخره ما غوښتل چې دا ستا په مینه کې بند زړه هم تا ته در وسپارم او ستا په لیدو ئې موږه کړم.

نو په چپر هجر ستا د دروازې په خوله کې لکه ملنگ حیران ودرېدم. حیران حیران مې یوې خوا او بلې خواته کتل او ستا د را تلو په انتظار وم.

هغه وخت چې مې ته ولیدې قسم دی چې زما زړه د خوشحالي نه ټوپونه و وهل: او څه بل رنگه خوشحالتیا ئې حس کړه مگر کرم وخت مې چې تا سره ستر گې مخامخ شوې تا را ته داسې دکر کې په نظر وکتل په ناز ناز د دروازې خولې ته را غلې د تمبې شاته ودرېدې او د کبر په حال کې دې را ته داسې وو یل چې:—

ته څوک ئې؟

ستا ددې کلمې په اورېدلو سره ځما په زړه کښې بیاد غم او اندېښنې انگېزې خپرې شوې. خو بیا مې هم درته ددې سوال یا جواب کې داسې وو یل! چې زه هغه یم چې زړه مې ستا د تورو زلفو بندیوان دی زه هغه دردېدلی او کړېدلی یم چې په مړو دو موډو مې خندا ✿

✿ او خوشحالي نه ده لیدلې شپه او ورځ ستا له غمه نا قرار یم.

او شپې او ورځې ستاد پسر لي په انتظار تېروم.

مگر تا ځما ددې ویناو په اورېدلو سره په یې ق پ ق وخندل او بیادې را ته وویل چې و بښه ته څوک ئې.

ما ستا ددې وینا داورېدلو په مقابل کې د لوړ څه ویلو قدرت نه درلود مگر په زوره مې د خولې یو کې یکه ووتله او داسې مې وویل چې دادې د خپل وجدان له وپوښته.

## د لویانو خبره

هر ستر اقدام په لومړي سر کې محال ښکاري.

(توماس کارلایل)

# د ژبې د انکشاف ځینې اړخونه

د پښتو ژبې د انکشاف په مسأله کې کله کله اوسني نسل له یو ډول تضاد سره مخامخ کیږي.

د مثال په توګه، ځینې کسان وايي چې پښتو انکشاف کړی دی او دا خبره هیڅکله نه شي منلی

چې څوک دې ووايي پښتو نامنکشفه ژبه ده. ځینې نور وايي چې پښتو باید انکشاف وکړي او

د یو معینې لارې چارې یې باید ولټول شي.

کومه خبره چې د دې مقدمې زما په فکر د دواړو خبرې درستې دي لیکن له قرینې څخه د یاندې یوه مسمه له ده. هغه کسان چې وايي

پښتو په کافي اندازه انکشاف کړی دی په حقیقت کې یوه فلا-لوژیکه واقعیت ته ګوته نیسي.

ټول ژبپوهان دا خبره تائیدوي چې د نړۍ هره یوه ژبه د دې استعداد لري چې د هغې

پلې ژبې مطلب په یوه یا بل ډول افاده کړي. ځایي دما-قبل التاریخ په دور کې به ځینې

ژبې ډېرې ساده او نامنکشفې وې. اوس هم ژبې د ځینو د و-حیاتي تجربو او پښو له شرحې او

بیان څخه قاصرې دي. څو که په ژبو کې کومه نیمګړتیا وي هغه به د ټولو ژبو مشترکه نیمګړتیا وي نه د یوې یا څو ټاکلو ژبو.

که موږ دغه پورتنی مطلب په پراګماتیکه ډول د پښتو په

برخه کې تطبیق کړو، ویلی شو چې دغه ژبه هر ډول علمي، هنري، او فلسفي پوهنو ته په خپله لمن کې

ځای ورکولی شي: دفتري چارې پیچلي تخنیکي کار و نه پرې اجرا کیدلی شي او کوم داسې

مطلب نه موندل کیږي چې پښتو دې د هغې له افادې څخه قاصره وي. دا د ژبې د انکشاف ذاتي او

داخلي خوا ده. د انکشاف بل اړخ دا دی چې ژبه یو مجرد او قایم بالذات شی نه دی. کله چې موږ

خبرې کوو په حقیقت کې د یوه شي یا موضوع په باب خبرې کوو مجردې او مطلقې خبرې وجود

نه لري. په دې اساس هغه ژبه چې ډېرو موضوعګانو په ګاڼه تشکیل شوې وي او هغه ژبه چې یوازې

د ساده ژوند بسیطو مسایلو ته وقف شوې وي که د قالب په لحاظ پوښلې نه وي د محتوی په لحاظ

یو تربله توپیر لري. د مثال په ډول هغه انګلیسي چې په لندن یا نیویارک کې استعمالیږي له هغه انګلیسي

سره چې د اریزونا سور پوستکي (هندیان) یې وايي د قالب له مخې کوم څرګند توپیر نه لري د دواړو ذاتي استعداد یو ډول دی اما د محتوی له مخې طبعاً د لندن یا نیویارک انګلیسي پراخه او بډایه ده.

د ژبې د انکشاف دوهم اړخ دا دی چې ژبه باید عصري او معیاري شي. ژبه په هغه صورت کې عصري بلل کیږي چې

هر ډول عصري پوهنې پکښې استعمال شوې وي. که تاسې په کومه ژبه کې د لومړي ځل د پاره یوه ژوره علمي او

پیچلې موضوع مطالعه کړئ نو ځایي به لومړي نظر به د ژبې ترکیب او د افادې څرنګوالی بیګانه غوندې وبریښي. هر

څه پس له استعمال نه عادت کیږي او عادي ښکاري.

له دې پورته خبرو څخه په مستقیم

یا غیرمستقیم ډول دې نتیجې ته رسیږو لومړی دا چې پښتو ژبه د هیڅ ډول سرپر-ستۍ او قیمومیت مرحلې ته اړتیا نه لري

دا یوه شتمنه او پراخه ژبه ده.

همدا اوس تاسې کولی شئ په پښتو باندې هر ډول مشکلات حل کړئ. دوهمه

دا چې د پښتو د انکشاف معنا دا ده چې باید د دې ژبې وظیفي انکشاف وکړي. هر ډول علمي هنري او فلسفي څېړنې پکښې زیاتې

شي د دې ځینو اړتیاوو د پوره کولو د پاره په کار دا چول شي عصري شي معیاري شي او داسې نور د ژبې د انکشاف بېرني اړخ

ګڼل کیږي. کوم وخت چې موږ د ژبې د انکشاف په باب خبرې کوو مقصد مو هماغه د عصري توب او معیاري توب اړخ دی.

(ذیږی)

«۵مخ»

# ډرامه او افسانه

# د ژوند دوهم اړخ دی

## افسانه په تاریخ او تاریخ په افسانه کښې پروت دی

## (دوهمه برخه)

د افسانه لیکوونکی د خواهش چې نور خلک دې د هغه افسانه ولولي په هغه وخت کښې پوره کیدای شي چې افسانه لیکوونکی د افسانې لوستونکي په زړه او جذباتو دونه اختیار حاصل کړي چې هغه د افسانې شروع کولو یعنې د افسانې د سر لوستلو سره مجبوره شي چې تر آخره افسانه ولولي.

ددې د پاره مختلفو او بیلو بیلو افسانه لیکوونکو دا ددې طریقې خوښې کړې دي.

۱- د افسانې شروع دې ډیره جالبه وي. د هغې الفاظ او د الفاظو ترکیب دې ښکلی وي چې لوستونکی خوند ترې واخلي.

دا طریقه ځکه ښه ګڼل کیږي چې زیات افسانه لوستونکي هغه خلک دي چې د دنیا د کارونو څخه یې زړه ستړی وي او د غم غلطولو د پاره لار لټوي. که افسانې په سر کښې داسې څه پیدا کړي چې هغه د څه لحظې د پاره د غمونو دنیا هیره کړي او د افسانې دنیا ته ورننوزي نو د لوستونکي او لیکوونکي د دواړو کامیابي ده.

۲- افسانه دې له هغه ځای څخه شروع شي چې په افسانه کښې تر ټولو جذاب او دلچسپ وي پروا نه کوي چې دا برخه د افسانې انجام وي. د یوې افسانې انجام په سر کې ښودل که له یوې خوا دا اندیښنه پیدا کوي چې د افسانې د پټو رازونو څخه برخه لوستونکي ته د وخت له سره معلومه شي ښایي چې هغه ددې راز افسانو سره دلچسپي ونه لري نو له بلې خوا دا ښکاره خبره ده چې د افسانو ټول خوند هم په داسې برخه کښې راغونډ شوی وي او که دا په سر کښې راوستل شي نو لوستونکي به د افسانې په کتلو مجبوره کړي.

۳- افسانه دې په داسې خبرو شروع شي چې هغه خبرې په افسانه کښې بنیادي حیثیت لري، سره له دې چې د افسانه نګارۍ فن د انګریزي ادب زیږنده دی، خو د افسانې د شروع کولو دا طریقه خاص د انګریزي افسانو یوه مخصوصه طریقه ده. د داسې خبرو اترو په ابتدا کښې افسانه لیکوونکي ته لازمه ده چې هغه دې د افسانې د یوه تن د خولې خبرې په داسې ډول وړاندې کړي چې په لوستونکي دومره اثر وکړي چې د یوې او دوو جملو په لوستلو سره د ټولې افسانې کتلو ته لیوال شي. که چیرې افسانه لیکوونکی ددې لومړي فرض په ادا کولو کښې څه کمزوري ښکاره کړي نو د یوه تن د خولې یو څو خبرې هیڅکله په یو ښه خیال وړاندې کولای نه شي.

بالفرض دا دري طریقې دي چې د یوې افسانې د شروع د خوند او کامیابۍ سره مرسته کوي مګر دا چې په دې دري واړو کښې به کومه طریقه ښه وي یو ګران سوال دی. ځکه چې دا د افسانه لیکوونکي خپل طبیعت دی چې هغه په کومه طریقه د خپلې افسانې شروع کول ښه ګڼي. فن ورباندې هیڅ قید او شرط نه ږدي. دا ځکه چې د هرې افسانې جوړښت ځان ته جلاجلاري په دې سره نه شي پوهیدای چې کومه طریقه به د افسانو د زیاتو جوړښتو سره سمون وخوري. سمه خبره دا ده چې دري سره طریقې په خپل خپل ځای ښې دي خو که په مناسب او موزون ځای کښې کار څنې واخستل شي.

که افسانه لیکوونکي په افسانه

کښې د ډرامې په شان اثر پیدا کول
غواړي نو ځکه په داوي چې افسانه
د لوبغاړو د چړوا تر وخته شروع

کا دی. که افسانه لیکونکی دا
غواړي چې په افسانه کښې د ماحول
اثر قایم کړي نو د ماحول د لفریبه

نقشه دا کښل به ځه وي او که
غواړي چې واقعې ته اهمیت
ور کړي، توجه به داوي چې

د واقعې د ښکلې برخې نه ځنې به
شروع کښې راواخلي.

## دافسانې عنوان:

په دې فن پوه خلک هیڅکله
دې خبرې ته پروانه کوي چې د
افسانې عنوان څه دی.

دومره قدر ګوري چې په افسانه
کښې څه دي، دافسانې د یو څو
کرښو د لوستلو څخه وروسته

دلیکونکی په لیک وهلو، یا یې
لیک مزه ورکړی او یا ورته یې
مزې ښکاره شي په نتیجه کښې

یا افسانه تر پایه ولولي او یا یې
بس په هغه ځای پرېږدي. مګر
دا یو څو مخصوص او محدود خلک

دي، د عامو خلکو نظر اول د
افسانې په عنوان پر یوزي که
دافسانې عنوان یې خوښ شي څو

ځیر به افسانه لوستل شروع
کړي او که نه نو دیل عنوان یا اچه
شي دفن په لحاظ داضروري نه ده

چې د یو عنوان به څو څو لوسره چې
دانسان په زړه کښې کوم امیدونه
راولاړه شي او وې هغه دې پوره هم
شي ځکه چې یو اړزي دافسانې

دعنوان څخه دافسانې معیار معلومیدلای
نه شي بلکه دعنوان مطلب یوازې تماشه
دی چې ظاهري ښایست یې دلوستونکی

توجه خپلې خواته راګرزوي. د افسانې په فن
پوه خلک عنوان دا علان سره تشبیه کوي
او وایي لکه څنګه چې د یوه اعلان په

لوستلو سره داضروري نه ده چې مضمون
او مقصد یې د هغه څخه سره برابروي چې
لوستونکی دعنوان څخه اندازه لګولی

وي په همدغه ډول د یو عنوان دپاره
داضروري نه ده چې لوستونکی دې خپل
هغه توقعات په افسانه کښې ومومي چې

دعنوان په لوستلو د هغه په ذهن کښې پیدا
شوي دي.

په دې وخت نو کښې دعنوان متعلق

په دې نظر به کښې نه بدلون راغلی دی
او زیات افسانه لیکونکي دافسانې له
ختمولو وروسته دافسانې دمجموعي اثر

لاندې عنوان قایموي او داطریقه نامناسبه
ګڼل کیږي چې دافسانې عنوان وټاکل
شي او وروسته په افسانه لیکلو پیل وشي.

نو دا کار دافسانې په پلاټ باندې خراب
اثر کوي ځکه چې هغه قدرتي ترتیب چې
دعنوان ټاکلو څخه پرته کیدای شي، نه پاته

کیږي.

افسانه لیکونکي دعنوان دټاکلو
دپاره له مختلفو طریقو څخه کار اخلي په

هغو کښې یوه عامه طریقه دا ده چې څه وخت
افسانه ختم شي نو دهغې په هر اړخ غور او
فکر وکړي او چې ذهن کوم مجموعي اثر

ځني حاصل کړي، دهغه سره سم عنوان ټاکل
کیږي امکان لري چې په دې طریقه عنوان
خوښ او کښې زیات عنوانونه هم مخې ته
راشي د لته نو په خپله دا دافسانه لیکونکي

قابلیت په کار لري چې په دې زیاتو
عنوانو کښې یو موزون او مناسب
عنوان وټاکي. دفن پوهان خو یوازې

دومره شا ده کوي چې دا سې
عنوان ښه نه وي چې د هغه په لوستلو
دافسانې دانجام راز فاش شي ځکه

په دې صورت کښې دافسانې خوند
هیڅ نه پاته کیږي.

عنوان باید په دې ډول وټاکل

شي چې که دیوې خوا دافسانې د
مرکزي خیال سره پوره مطابق
وي نو له بلې خوا په عنوان کښې

دا ښیګڼې هم وي چې دافسانې
انجام یې په موټ کښې کلک
نیولی وي تر څو چې لوستونکی

افسانه ختم کړي نه وي، هغه دې هم
په دې جنجال کښې وي چې دا عنوان
د دې افسانې دپاره ولې خوښ شوی

دی. دا جنجال باید تر هغو پورې
روان وي ځو چې د افسانې آخره
برخه نه وي راورسیدلې. او چې څه

وخت چې له افسانې لوستل شي نو بیا
په کاره ده چې لوستونکی دا احساس
کړي چې دا عنوان دافسانې دپاره

ډیر زیات موزون نه دی څو د ډیرو
ښو عنوانو څخه یو ضرور دی.

یوه بله طریقه چې افسانه

لیکونکي یې دافسانې دعنوان ټاکلو
دپاره خوښوي هغه د مرکزي خیال
تحریکي جذبه ده. دا جذبه د فکر،

نظر یې او دلیل سره تحریکي رابطه
لري او دې جذبې د معلومیدو څخه
وروسته دا فیصله کیدای شي چې
کوم شی ؤ چې افسانه لیکونکی

یې د افسانې په لیکلو مجبوره کړې دي که چیرې د دغه سوال جواب په عنوان کښې موجود دی نو عنوان درست دی او که تحریکي جذبات یې نور څه وي او عنوان بل څه وايي نو عنوان غلط دی.

دا تحریکي جذبات ډېر اقسام لري:

۱- هغه جذبات چې د کوم خاص شي سره تعلق لري لکه د یوې مور د خپل یوازني زوی سره د محبت جذبه.

۲- هغه جذبات چې د یو ډول شیانو سره تعلق لري لکه د یوې سړي د خپل اولاد سره د محبت جذبه.

۳- علمي جذبات چې د نظریې، دای او دلیل سره تعلق لري.

۴- معاشرتي جذبات چې د فعالو سره تعلق لري.

۵- مذهبي جذبات چې د مذهبي عقیدو او اصولو سره تعلق لري....

غرض دا چې د عنوان د هغې تحریکي جذبې د کتلو نه وروسته چې عنوان یې ترې اثر لاندې قایم شوی وي د هغې تحریکي جذبې څه اشاره دې په عنوان کښې وي لکه مینه، محبت، ایثار، قرباني، نفرت، او حقارت، کینه، بغض، خوش قسمتي او بد قسمتي.

عنوانونه د نو مو ډو جذباتو مفتونه اري څېنې افسانه لیکونکي دا طریقه خوښوي چې د هغه په افسانه کښې چې کوم مهم لوبغاړی وي د هغه فرضي یا اصلي نوم د افسانې عنوان ټاکي او که په هغه لوبغاړي کښې څه ښکاره صفت موجود وي چې د نوموړي صفت په وجه لوبغاړي د افسانې په پلاټ کښې څه ښکاره برخه اخیستې وي نو د نوم سره یو ځای په صفت چوډلو کښې هم باك نه ګڼل کیږي او که چیرې د افسانې په ماحول کښې لوبغاړي ته څه داسې درجه یا رتبه حاصله وي چې په ټولنه کښې امتیازي شان ګڼل کیږي نو د نوم سره دې د لوبغاړي درجه یا رتبه هم وښودل شي دا ډول افسانې په عمومي توګه د یوې خاصې زمانې، یو خاص وطن او د یوه خاص رسم او رواج متعلق لیکل کیږي او لوستونکي ته د عنوان د لوستلو نه وروسته دومره ښکاره شي چې دا د کومې زمانې کوم وطن او رسم سره تعلق لري.

څېنې افسانه لیکونکي داسې عنوان نه خوښوي چې په هغه کې د افسانې یوې مهمې واقعې ته اشاره شوې وي. خو د افسانې پوهان دا طریقه ځکه نه ګڼي څکه چې د افسانې د پلاټ بڅه خزانه په کښې یعنې هغه واقعه چې د بیانولو د پاره یې افسانه لیکونکي د ټولې افسانې د لیکلو کوښښ کړی دی د عنوان په لوستلو سره لوستونکي ته ښکاره کیږي.

ښکاره ده چې په دې راز افسانو کښې به هغونه زړه جلبوونکي پاتې نه شي څومره چې د افسانې د دې راز په پټ ساتلو کښې پاتې کیږي. لنډه دا چې دا ډول نورې زیاتې طریقې شته چې افسانه لیکونکي د هغې په مرسته د افسانې عنوان ټاکي.

د افسانې په فني حقیقت او د هغې په مختلفو فني اړخونو د بحث نه وروسته په آخر کښې دومره وایو چې په پښتو ادب کښې افسانه نوې شروع شوې ده کوم شی چې په ابتدايي حالت کښې وي هغه به ضرور کمزورۍ لري. څومره چې فن د ترقۍ خواته روانېږي هغومره خپلې کمزورۍ شاته پرېږدي، تر څو چې داسې وخت راشي چې هغه فن مکمل او پوره وګڼل شي.

## افسانه باید څنګه وي؟

د افسانې په فني اړخونو د ترتیب په څه رنګې کښې تر دې ځایه پورې یو څه خبرې وشوې اوس نو د دې وارد دی چې ووایم: موږ څنګه افسانې او ډرامې ته ضرورت لرو؟ زموږ لیکوال باید څنګه افسانې او ډرامې ولیکي؟

زموږ په ورځپاڼو، جریدو، مجلاو او راډیو کښې چې څومره افسانې خپرېږي یا دا چې له غربي آثارو څخه ترجمه شوې وي او یا یې تر لږه د غربي تهذیب بوی لري او که فرضاً څوك کومه فرضي او حقیقي افسانه لیکي بیا یې هم نومونه غربي وي او لوبغاړي په غربي نومونو مسمی کوي.

په دې طرز تفکر کښې ډېرې نیمګړتیاوې پرتې دي یو دا چې غربي بڼه پیدا کوي چې زموږ خپل تهذیب تر خپل سیوري لاندې راولي او یا یې بیخي له منځه باسي چې دې کار ته هوښیاران او د پوهې خاوندان څه نه وایي. «پاتې په ۲۶مخ کې»

د نثار احمد «رزمند» ژباړه

# ژبې ته ولې طبيعي پديده نه سو ويلای؟

## دوهمه برخه

اما کله چې لومړني انسان په واقعي او فرهنګي انسان بدل شو د پوهو لو او پرمختګ لومړني

وسيلې يې هم په تدريج سره ظهور وکړ. يعني دوهم سيګنالي سيستم د لومړني سيګنالي سيستم پر

قاعده او بناء او د کلماتو په شکل يې انکشاف وکړ. له دې جهته پاولف د لومړني او دوهم

سيګنالونو تيوري منځ ته راغله.

پاولف بيا د خپل تحقيق په ترڅ کښې ليکي: ابتدائي انسان

د طبيعي او اجتماعي محيط په منځ کښې ژوند شروع کړ. د طبيعت او اجتماع سره يې تماس کې سو

د طبيعت او اجتماع د متقابله عمل او عکس العمل څخه په متاثره کيدې. احساسات او خيالات به

ورته پيدا کيدل او ددې تأثيراتو، خيالاتو او احساساتو انتقال ته يې احتياج پيدا کاوه او خامخا

په هغو وسيله ورته په کار وه چې خپل احساسات په هغه سره اظهار کړي. دغه کار به يې د لومړنيو سيګنالونو په مرسته پای ته

رساوه چې موږ هغو ته کلمې نشو ويلای. دا سيګنالونه يواځې اوازونه (الکه د هاروېږ) اشارې او ځينې حرکتونه وه چې

د هغوی په واسطه به ابتدائي انسان د نورو ژوندیو موجوداتو سره سر و کار درلود.

پاولف زياتوي چې د لومړنيو سيګنالونو سيستم زموږ او د حيواناتو ترمنځ مشترک دی. اما د دوهمو سيګنالونو

سيستم يواځې انسان ته منسوب دی ځکه چې دا سيستم د يو مجرد فکر او تفکر د يوه عمومي درک او فهم د منځ ته راتلو سره

مستقيمه رابطه لري لنډه دا چې د انسان امتياز په دې کښې دی چې د عمومي درک او فهم استعداد لري کوم چې د کلماتو

په دوهم سيګنالي سيستم په مرسته منځ ته راځي. برعکس حيوانات د عمومي او مجرد فهم استعداد نه لري او له همدې کبله يې

د لومړنيو سيګنالونو سيستم ځای پر ځای ولاړ دی او د کلماتو په مرسته نه دی منکشف شوی.

همدا کلمات دي چې زموږ د دوهمو سيګنالونو سيستم يې په يوه خاص ډول د لومړنيو سيګنالونو پر بنسټ بناء کړی او انسان د فکري ملکې او استعداد په زور د

د لومړنيو سيګنالونو د سيستم څخه دا ووت خپل فکر يې د دوهمو سيګنالونو (کلمو) په چوکاټ کښې

واچاوه څو ورځ په ورځ يې انکشاف وکړي.

په لومړني نظر معلوميږي

چې دا مسئله په قطعي ډول په کورنيو او اهلي حيواناتو کښې صدق نه کوي ځکه کورني حيوانات

انسان پېژني او په خبرو يې هم تر يوه حده پوهيږي. ددې علت خو دا دی چې کورني حيوانات د پېړيو پېړيو

راهيسې د انسان سره ګډ ژوند کوي او په اسانۍ سره اموخته کيږي. د انسان د ځينو کلمو او خبرو په

مقصد پوهيږي که کوم سړی خپل کورني حيوان ته ږغ کړي نو هغه پوهيږي چې خاوند يې څه غواړي.

د مثال په ډول: اوښ په شپېلکه اوبه څښي، اوښ چې شپېلک واوري نو پوهيږي چې د خاوند

مقصد يې دا دی چې دی اوبه وڅښي. چرګکه چې تو تو ووېل شي نو خپل خاوند ته راځي. ځينې حيوانات د خپل خاوند په ډېرو خبرو پوهيږي.

زموږ ی کورنی حیوانات حتی په ځینو اوږدو جملو هم پوهیدای شی او کله چی خاوندګی خبری ورته کوی دی ځکی په ځکی وربانډی پوهیږی او د خاوند په میل پاندی برابر کار کوی.

لنډه دا چی حیوانات په بیلو بیلو د انسانانو سره د وږدیږی او په مختلفو بیلو خپلو خاوندانو

تخیل احساسات هر ګندوی خو بیا هم نه سی کیدای چی ددوی دا احساساتو د هر ګندولو ډول

دی دلومړنیو سیګنالو له سیستم څخه راوونړۍ ځکه چی د خبرو کول سیستم حتی ځینو منکشفو

روډل سوو کورنیو حیواناتو ته هم نه دی ورپه برخه سوی.

ډیورینګک کوښښ کاوه چی

مستقیم او غیر مستقیم فکر دی د بیان د وسیلی (ژبی) له قیده څخه خلاص کړی. او ثابته کړی چی

ژبه او فکر هیڅ رابطه نه سره لری بلکه بیل بیل شیان دی. خو د انګلز څخه یی داسی سخت جواب

واورید چی بیا یی په عمر ددې خبری نوم نه واخیستی. انګلز به جواب کی ورته وویل «که ستا

خبره صحیح وی نو حیوان باید تر انسان ښه تر افکر کوونکی وی ځکه چی د حیوان فکر د ژبی

د بی ځایه مداخلی څخه په امان دی او د ژبی په واسطه نه تحریکیږی».

ټول پورتنی تشریحات موږ دې نتیجې ته رسوی چی:

۱- ژبه نه طبیعي پیښه ده او نه بیالوژیکی.

۲- د ژبی موجودیت او انکشاف په هیڅ ډول د طبیعي قوانینو تابع نه ګڼل کیږی.

۳- د انسان بیالوژیکی او جسمی خواص او علامی لکه (نژاد) او داسی نور د ژبی سره هیڅ رابطه نه لری.

٤- یوازی انسان دی چی د ژبی د دوهم سیګنالی سیستم څښتن دی او حیوان د ژبی له دې نعمت څخه بی برخی دی.

دا چی ژبه طبیعي پیښه (پدیده) نه ده نو باید د هغی اساس د اجتماعي پیښو په منځ کی ولټوو او دا یو معقول کار هم دی

اما ددې د پاره چی خبره پوره سپینه سی باید حتماً د ژبی موقعیت د نورو اجتماعي پدیدو په منځ کی ښکاره سی. د ژبی

دا خاص موقعیت یی هغه مخصوص او فوق العاده نقش پاندی متکی دی کوم چی ژبه یی د ټولنی د پاره په ټولنه کی

لوبوی.

ژبه د نورو اجتماعي پیښو سره څه ارتباط لری او د څه شی په واسطه له

هغو څخه بیلیږی؟

د ژبی ارتباط او اشتراک د نورو اجتماعي پیښو سره په دې کښی دی چی

ژبه د بشری ټولنی د موجودیت، منځ ته راتګ، ودې او انکشاف حتمی او ضروری شرایط او عوامل برابروی او د بشری

ټولنی د معنوی ثقافت مهم عنصر بلل کیږی.

ژبه هم لکه نوری اجتماعي پیښی د مادیت څخه د بیلتون او جدایی په صورت

کښی ناممکنه ښکاری او له همدې کبله ده چی د ژبی وظیفه، د کار کولو قوانین او تاریخی وده عین په دې بڼه کښی د نورو اجتماعي پیښو سره توپیر پیدا کوی.

دا چی ژبه بیالوژیکی او ارګانیزم (جوړښت) نه دی بلکه اجتماعي پیښه ده په خوا لا په دې باره کی د سوسیالوجی د مکتب

ایډیالستی نماینده ګانو (ف. دی. سا سیور، ژ. وان دری یس ه. می. یی) او د مټریالستی علمبر دارانو له خوا (ل. نووارۍ، ن. ی. مار) په خپل وار سره د ایډیالیزم او مټریالیزم تر بیرغو لاندی په مساوی ډول خپلی نظری څرګندی کړی دی اما بیا هم د ټولنی د جوړښت او د اجتماعي

پدیدو د څرنګوالی او مشخصاتو د پوره نه پیژندنی خنډ د نوموړو پوهانو په لار کښی د یوه ستر مانع

په حیث پروت ؤ.

نننی مترقی علوم ټوله اجتماعي پیښی په زیربنا (د یوی ټاکلی ټولنی اقتصادی جوړښت او په یوه ټاکلی تاریخی دوره کی د هغی تکامل) او روبنا (د یوی معینی ټولنی سیاسی، حقوقی، مذهبی، هنری او ادبی عقاید او د هغو مربوطی مؤسسی او سازمانو) باندی

ویشی او وایی چی هره زیربناء ځان ته روبناء هم لری.

مګر ژبه د خپل اجتماعي خصوصیت له مخی په هم هغه پخوانی شکل د پوهولو او را پوهولو د وسیلی په صفت تر ننه پوری باتی شوی ده. دا ځکه چی ژبه په یوه

طبقه او ډلې پورې اړه نه لري بلکه په ټوله ټولنه (د مختلفو طبقو مجموعه) پورې تړلې ده او د ټولې ټولنې د مختلفو طبقو او ډلو هغه مشترک مال دی کوم چې بې له هغې ټولنې په هیڅ ډول د یوه واحد حقیقت په صفت منځ ته نه شي راتلای ولې روبنا په طبقه او ډله پورې اړه لري او د طبقې مال بلل کیږي. ژبه د ټولې ټولنې د ټولو طبقو او ډلو په خدمت کښې ده اما روبنا د یوې معینې ډلې د اقتصادي نظام پر بنسټ بنا کیږي.

دا د هیچا په فکر کښې نه راتله چې ګواکې ژبه دې د زیربنا سره یو شی وي یعنې ژبه دې کټ مټ اساس او بنسټ وي مګر د ژبې داخلول په روبنا کښې د شوروي ژبپوهنې او نورو خارجي ژبپوهنو له خوا یو ډول فیصله کیده.

د ډلنې پیالوژیکانو د دې ډول معروفو نظریاتو او عقایدو څخه پوهېداوه چې ژبه بې ایډیالوژي بلله او د روبنا ګڼلو په چوکاټ کښې یې ورداخلوله ژبه او ثقافت یې یو شی بلله او عین شی ګڼله خو بالاخره دا عقاید او نظریات د یو لې غلطو نتیجو د منځ ته راتللو سبب شول.

ژبه ولې د روبنا نه ده؟

څکه چې ژبه د یو ټاکلي بنسټ څخه نه را پیدا کیږي بلکه د بشري ټولنې د پوهولو او د اپوهولو هغه بوازنی وسیله ده کومه چې د یوې پیړۍ په جریان کښې جوړه شوې او تر اوسه پورې ساتل شوې ده. په دې پیړۍ کښې ډیرې زیربناوې او د هغو څخه را پیدا شوې روبناوې بیخي په نوي رنګ ونښتې دي څکه چې روبنا په طبقاتي جامعه کښې د هم هغې طبقې مال بلل کیږي او ژبه په هیڅ یوه طبقه پورې نه ده تړلې. بلکه ژبه د ټولو مختلفو طبقو مشترک مال دی.

طبقه په بله طبقه بدلیږي اما د ټولنې اجتماعیت تل په خپل ځای پاتې او ثابت دی. ژبه د ټولنې هغه مال دی کوم چې بې له هغه په هیڅ ډول نوموړې ټولنه نه شوه جوړېدلای.

«ن. ی. مار» او د ده (د ژبې په باره کې د نوي تعلیماتو) پیروانو داسې اټکلوله چې ژبه د طبقې مال دی او نه د ټولنې د وی د ژبې په باره کښې هغه نظریه د خپلو ممتازو نظریاتو څخه شمیرله حال دا چې د هغه دې نظریې په اساس د ژبې او نورو اجتماعي پیښو پوره نه پیوندنه ښکاره شوه څکه چې په یوه ټولنه (طبقاتي جامعه) کښې د مختلفو طبقو د پاره نه یوازې ژبه بلکه اقتصاد هم هغه ګډ او عمومي رول لوبوي کوم چې بې له هغه ټولنه د روبنا کیدو خواته ځي او مري.

د ژبې په باره کښې د داسې نظریو خاوندانو او د هغو پیروانو د سرمایه لرونکو او د کارګرو د ګټو د تضاد او طبقاتي مبارزو په مقابل کې ټولنه تجزیه بلله او ویل یې چې د ګټو د تضاد او طبقاتي مبارزو د موجودیت په حال کښې هیڅکله واحده ټولنه منځ ته نه شي راتلای ټول یوازې شی چې واقعیت لري هغه طبقه ده او بس او د هغه دې دلیل او استناد په اساس یې دعوه کوله چې ژبه د طبقې مال دی نه د ټولنې. څکه چې د تضاد او طبقاتي مبارزو په سبب واحده ټولنه هیڅ نه تشکیلیږي او واحده ژبه هم نه ده ورته په کار او نه شته. حال دا چې ټولنه په عملي ډول موجودیت لري او هم یې د ټولو ډلو د پاره یوه عمومي او تفهیمي ژبه ضروري او حتمي ګڼل کیږي چې بیرته له هغه ټولنه خپل کار، فعالیت او تولید له لاسه ورکوي تجزیه کیږي او د ټولنې ایجاد او منځ ته راتلل ځای پر ځای دریږي.

څرګنده خبره ده چې ژبه په هر ډول اجتماعي نظام کې د ټولو طبقو ترمنځ مشترکه او عمومي وي د مثال په ډول: روسي ژبې د روسیې د سرمایه داري ټولنې کلچر او ثقافت ته د اکتوبر تر انقلابه پورې په همغه ډول کار ورکي کوم چې تر انقلاب وروسته یې د شوروي اتحاد د سوسیالستي دولت د پاره سرته رسوي.

له دې څخه دا نتیجه لاس ته راځي چې ژبه طبقاتي نه ده او په طبقاتي شکل ژبه هیڅ نه وي او نه شته.

د ژبپوهانو یوه سهوه دا وه چې دوی ژبه او ثقافت یو شی بلل لیکن دا پوښتنه والې صحیح نه دی څکه چې ثقافت د روبنا مظهر دی مګر ژبه د روبنا سره اړه نه لري او په هغه کې نه حسابیږي.

دژبې او ثقافت د پوښانتنه والی له نظر بو ته پورلې غلط نقابچ منځ ته راغلل ځکه چې تو مو ډ ې نظر بې

کوم علمي اساس نه لري. دغه وجه ده چې ژبه او ثقافت یو لشو ګڼلای. ثقافت کیدای شي چې

طبقاتي وي او ژبه دا خاصه نه لري ځکه چې ژبه د ټل له پاره. د ټولنې دفکري ارتباط وسیله ده چې بې ټو

لو اجتماعي سیستمونو کې د یو شو لو اودا پر هو لو وظیفه اجرا کوي او ټل د ټولنې د ټولو غړو مال دي چې د هرې ټولنې ثقافت منعکسوي او خدمت ئې کوي.

## دژبې او ثقافت ترمنځ کومه خپلوي شته او که نه؟

ملي ژبه د ملي کلچر او ثقافت یو عنصر دی. ژبه او ثقافت د بیلوالی او جدائې په صورت کې په

مساوي ډول محال او ناممکنه ښکاري یعنې ژبه بې له ثقافت او ثقافت بې له ژبې څخه هیڅ واقعیت نه لري.

په نتیجه کښې ویلای شو چې ژبه هغه اپدیالوجي نه ده چې د ثقافت پر بنسټ ولاړه وي.

دا پلټنې او تشبثات بالخاصه (ن. ی. مار) منځ ته داوستل چې په هغو کښې بې ژبه د تولید

د وسیلې سره مشابه او ورته وبلله. هو! ژبه وسیله ده، تو وسیله هم په خاصه او ټاکلې معنی. د تولیدي وسایلو

او ژبې اشتراک او سره ورته والی دادی چې ژبه د روښنا سره هیڅ رابطه نه لري او د مختلفو طبقو خدمت کوي. امادتو لید وسایل

او لادمادي ګټه تولیدوي. مګر ژبه مادي ګټې نه شي تولیدولای بلکه د ټولنې د ټولو غړو ترمنځ د افهام او تفهیم وسیله

شمیرل کیږي.

ژبه یوه ایدیالوژیکي آله او وسیله ده. ځکه که چیرې د تولیدو سایل ځانته

د جو ډ ښت نقشه لازم -ر او صورت لري نو ژبه هم ځانته مخصوص جوړ ښت او سیستماتیک تشکیل لري له همدې کبله ده

چې ژبه د بنسټ او جوړ ښت او د تولیدي وسایلو په څو کاټ کې نشو داو ستلای او د ثقافت او کلچر سره یې هم یو شان نه

نشو بللای. طبقاتي هم نشوو ته ویلای بلکه ژبه یو اجتماعي پدیده ده چې د نورو اجتماعي پدیدو په منځ کې یو مخصوص

معین او ټاکلی ځای ځان ته لري دی او مخصوص خواص لري.

دا مخصوص خواص کوم دي؟

په دې وجه چې ژبه د اجتماعي رابطې وسیله ده په عین وخت کې د معنا او خیالو نو او فکرونو د تغییر او بدلون وظیفه

هم اجرا کوي. دا ته په طبیعي ډول د ژبې او فکر ترمنځ د رابطې سوال منځ ته راځي.

د دې پوښتنې د حل په شا وخوا کې

دوې تضادې او په برابر ډول غلطې نظریې شته.

۱- دژبې او فکر بیلوالی.

۲- دژبې او فکر یوشانته والی.

ژبه د یوې ټولنې کډمال دی. او د ټولنو د غړو ترمنځ بشري رابطه

پیدا کوي. یو او بل ته د خبرو کولو او د مهمو او ضروري خبرو نو د ساتلو امکانات برابروي.

ژبه اجتماعي پانګه ده چې د بیړیو

په ترڅ کې منځ ته راځي او ذخیره کیږي. فکر د ژبې په نسبت ډیر ژر ژر او په چټکۍ سره انکشاف

کوي او نوی کیږي. اما بیاهم فکر د ژبې سره د بیلتون په حال کې د اسې مثال لري لکه شی د شی

د پاره (شی د شی د پاره دا معنا چې شی په خپله د خپل ځان د پاره نه دبل شي او بل ځاد پاره) یعنې هغه فکر چې

د ژبې په واسطه څرګند نه شي هغه نه روښانه او ښکاره فکر کوم چې د انسان سره د طبیعي پیښو په

پوهیدلو کې مرسته کوي، نشو ویلای. او د هغه فکر نسبت نه شو ور ته کولای. چې علم ته انکشاف ور کوي او پشپړ وي بې. دا ډول فکر (بې ژبې فکر) یو ډول پیش بینی ده. نه کومه مشاهده او تجربه او د فکر د کلمې حقیقي پیژندنه په دې ډول لاس ته نه راځي.

انسان د ټل له پاره کولای شي چې ژبه لکه تیار مواد (کلمې یا جملې) د فاد مو او قالبو په شان د مروجو او غیره مروجو (نوو) شیانو او مفهومو نو د پاره په کار واچوي. د (لغت علم) داچې لکه ځکه چې په ژبه کې د نوو افکارو او مفهومو نو د پوهولو او څرګند ولو د پاره وسیلې پیدا کولای شو د غسې د علمي نوو موضوعاتو د پاره مناسب اصطلاحات جوړولای شو کله چې نور مفهومو د ځان د پاره نوی. نو او ضروري کلمې پیدا کړي نو د ټولنې د نورو غړو او هغو کسانو له پاره ده چې د نو موړو نوو علمي کلمو

«پاته په ۲۶ مخ کې»

ژباړونکی (رحیمی)

# EXISTENTIALISM

# یا

# د وجودیه مذهب

## انساني کرامت او خود آزادیت ته عقیده درلودل

## داګزیستانشلزم د اساسي اصولو څخه بلل کیږي

د ۱۹۳۰ م کال راپه دېخوا داګزیستانشلزم فلسفې بې شمېره پیروان پیدا کړي دي. خو د دې فلسفې اصول او اساسات نوي نه دي. په ټولو تاریخي دورو کې د «وجود» موضوع او د هغه څرنګه والي فلاسفه په دې باب مشغوله کړې دي.

اګزیستانشلزم تر هر څه اومړی د یونان د مجردیت او ظواهر پسندۍ د فلسفې په مقابل کې بیرغ پورته کړ. ځکه پرته له یوې لنډې دورې څخه چې هغه یې د تصوف دوره بللې ده او د هغه شعار داؤ «انسان د ټولو شیانو معیار دی» د وخت فیلسوفان به یا د خپل ماحول په جهان مشغول وه او یا به یې د مجردو افکارو په پرورش کې لاس او پښې وهلې. متفکر وجود یا د ازادۍ څښتن موجود چې د پېښو او چارو په باب فکر کوي ډېر لږ تر جدي پاملرنې لاندې راغی.

دوهم — د اګزیستانشلزم فلسفه د او فلسفې د تعقلي مذهب په مقابل کې چې د «دیکارت» په فارمول بنا ده، ولاړه ده. دیکارت وایي «څرنګه چې فکر کوم نو هست او موجود یم» په دې ترتیب نو ده مجرد علم ته د موجود د مادې په مقابل کې د برترۍ او د لومړیتوب حق ورکاوه. دغه عقلي میلان د هیګل په سیستم کې هم تبارز وکړ. څرنګه چې دده په فارمول کې هغه سوې د هغو د افلاطون طرح چې تعقل یې د واقعیت سره په برابرۍ او مساوات کې راوستلی دی، اثبات کړی.

د فارمولو او سیستمو سره داقرله علاقه درلودل په حقیقت کې د ژوندانه د ګیچنو څخه د تیښتې یوه وسیله ده کوم چې انسان خفه کوي. دغه سیستمونه نه یوازې د انسان د ازادۍ د سلبیدو په وړاندې مسئوله دي، بلکه په دې خاطر هم مسئوله دي چې دا سیستمونه هیله لري څو انسان د هغو تر قیود تر لاندې ژوند وکړي او د خپل ایجاباتو سره مطابقت وکړي که څه هم ډېر حله منحرف کوونکی وي.

دریم — اګزیستانشلزم د بشر ولاړ [illegible] په مقابل کې چې په اوسني تخنیکي او صنعتي عصر کې د غیر بشري اطوارو د کسبولو په اړه کې دی، او [illegible] ته چاله وتلو (خود بیګانګي) مرحله چې د یونانیانو په عصر کې ترویج سوی وه، د عقلي مذهب د ظهور تر عصره پورې دوام وکړ او حتی په اوسني عصر کې چې د ماشین عصر دی نهایي درجې ته رسیدلې ده. انسان ته د ډېرو اهمیتو بولي کې د هغه هستي او وجود د یوه نعمت په حیث اعطا سوی دی، خو هغه یې یو زاید او غیر ضروري شی بللی دی. د ساینس عالمان اصلاً تنزیل ته کوي چې انساني ارزښت د یوه دینامیکي موجود د یو جهت په رسمیت و پیژني. د دوی جهان د یوه مقیاساتو، محاسباتو او احصائیو معیار و جهان دی. د ماشیني ماتو په [illegible]

دیوالوع بنیادي مجردیت په توصل دلیږدپیښو تاداو داسې ایښې دي چې اصلاً دشخصیت دتحریم دنیا بلل کیږي او یو خالص عقلي او ظاهري جهان دی».

اګزیستانشلزم انسان دمجردو افکارو په ساحه کې دغرور آمیز لوړ پروازڅخه بېرته د مځکې خاوریښې کړې ته رابولي اوخپل موجودیت ته یې متوجه کوي. دغه مذهب انسان وادار کوي چې دخپلې هستي واقعیتونه درک کړي او له هغه څخه وانه تښتي او دامانویل مانوبه په قول» دغه مذهب انسان ددنیایي او ذاتي خواښیني څخه چېرا آخپل موجودیت ته راګرځوي» دغه ډول تفکر موږ دفطري او اساسي ترښو پرابلمو خوا ته رهنمایي کوي او هغه دادي: ځان څه معني لري؟ هرڅنګه دځان دازادۍ څخه استفاده وکړو؟ څنګه کولای شو چې د مرګ سره دمقابلې کېدو جرأت پیدا کړو او هغه حفظ کړو؟

علاوه پر هغه دامذهب هر متفکر شخص ته وایي چې دنورو دپوښتنې په عوض کې باید دځانې پرابلمو سره تر هغه وخته مجادله وسي څو انسان خپل شخصي اعتبار او اصلیت درک کړي.

دغه رنګه د وجودیه مذهب پیروان شخصي تجربې ته په ډېر اهمیت قایل دي او هغه په ټینګه تائیدوي. دغوی هر ډول اصیل معرفت صرف دیوې باطني تجربې او مستقیم درک په واسطه ممکن ګڼي. تر ټولو مهمه موضوع چې د اګزیستانشلزم پیروان د هغه سره سروکار لري عبارت دفرد دي آزادۍ څخه ده. ځکه د ازادۍ ازادي په کار اچول دي چې یو موجود دخپل اصلیت او اعتبار درک کوي او غیر له هغه دغه موجود به داسې بوشي وي لکه نورشیان. انتخاب او تصمیم هغه اعمال دي چې د هغه په واسطه انسان دخپل ځان کشف کوي او دنورو موجوداتو څخه خپل موجودیت مشخص کوي.

وموویل چې دوجودیه مذهب پیروان دیونان د کلاسیکو فلسفي سره چې په مجرد تصور باندې بنا ده، سخت دښمنان دي. لکه هرڅنګه چې وایي: اګزیستانشلزم «د انسان د فلسفي عکس العمل دی دافراط په مقابل کې او یو احتجاج دی د تصوراتو او مجرداتو دفلسفې په وړاندې» دوي شکایت لري چې دموجوداتو په باب کلاسیک علم د تصوراتو تر اغیزې لاندې دی چې په ساکنه نیرو پورې ارتباط لري، ځکه نو دډینامیزم روحیه نه لري.

د هغه موضوع ذکر کړه چې ادو پایې نوی فلسفي خط السیر دیکارت او د هغه دا شعار چې وایې «هرڅنګه چې فکر کوم نو موجود یم» ټاکلی دی او دغه فارمول دی چې دنوي عقلي فلسفي اساس یې ایښی دی. دغه تمایل په تېره بیا دهیګل په ایډیالیستیک سیستم کې اوج ته رسېدلی دی.. هیګل په سیستم کې چې یو عقلاني حکمت دی ټوله شیان شاملیږي هم آهنګ کیږي، عقلي وجه پیدا کوي او په دغه معیار ارزیابي کیږي.

دغه های دی چې اګزیستانشلزم د هیګل دسیستم په مقابل کې په خاص ډول مبارزه پیل کوي. ځکه ددې مذهب دپیروانو په عقیده «هیګل یې شکه ډېره ښکلې او ډاني جوړه کړې ده، مګر هیڅوک نشي کولای په هغه کې ژوند وکړي. د بشر دوجوداتو او واقعیت، دهغه کامیابي او ناکامي، دهغه تلخۍ او شیرینۍ ټوله ترهغه ودانۍ دباندې په کوڅه کې پاته شوي دي.»

ددې لنډ بحث څخه دې نتیجې ته رسیږو چې دوجودیه مذهب بحث او جدل د هیګل د سیستم سره پر هغو موضوعاتو دی چې په هغه کې هیګل تعقل ته قایل دی. خو ددې څخه باید دا نتیجه وانه خستل سي چې دوجودیه مذهب یو ډول ضد عقلي فلسفه ده.. بلکه دا مذهب و تعقل ته په دوهم لاس کې قایل دی لکه هرڅنګه چې ډېر نوره عقلي مذهبونه ته قایل دي. په بل عبارت وجودیه مذهب ادعا کوي چې تعقل د ژوند دیوازنۍ شمار نه دی ــ تعقل داسې نفوذ کوي چې نظر د انسان وحالاتو او شرایطو ته دهغه دوجود دپیمایښ دپاره عالي ترینه وسیله نه سي بلل کېدای. ځکه چې وجود دازادۍ او بې قیدۍ متضمن دی او په دې لحاظ کاملاً عقلي وجه نه سي پیدا کولای.



چې ښکلي هر څه لا دلرباوي
په ځان د هر چا هومره بلاوي

شمع نه کوري ده ګرم روبه
پروانه سوځي دا په خندا دي
(ک.ط)

## لنډۍ ټولونکی «پنهان»

زما د زلفو رسۍ ایسـه
دغم تر څه دریاب پورې وزه مینه
زلفې دې دام خال دې دانه دی
وږی مرغه یم په جال کښېوتم مینه
په تورو زلفو به لې بند کړم
په لونګین به ګی وهم آرام بی کړمه

د اسنا د زلـفو یـو تـار را که
چې پرې پیوند کړم د زړه ګی تری درزونه
د زلفو فرش مې غـوړولی
د سترګو اوښکې په جانان بـی لیږمه
دمخ ګلشن دې سهار جوړ کی
د زلفو باد دې غوړولي زړه ګلونه

د هاینه اثر

# وداع

درختو شګوفه کړې وه او بلبلانو دیزونه کول، لمر په ډیر هوس هر لور ته خپلې پلوشې خپرولې چې تا ځه ټینګ په غېږ کې نیولی وم. زړه مو یو د بل پر زړه او شونډې مو یو د بل پر شونډو ایښې وې.

... څه زمانه وروسته مو ولیده چې د ونو بلګونه تو ئیدل، لمر په مې ژواندی ښه مو نه کتل. موږ یو له بله سره وداع وکړه، تا په ډیر احترام سر ټیټ کړ او ولاړې.

# تښتوی له سترګو خواب

په یر تو چې بی د مخ سو ګلاب آب
هغه یار د زړه په وینو کړم سیراب
که حجاب له مخه واخلي محوه کیږم
ذره هیڅ ده په دامخ کی د آفتاب

یو د ترکو په غمزو وم شهید سوی
بل مطرب په نغمه وسوم د رباب
په فراق کښې د زړه حال له ما مه غواړه
په سره اور کی به څه حال وي د کباب

موج د اوښکو مې له سترګو څه داغی
ډوب غمونو کړم په قعر د دریاب
په پوښتنه د رقیب خرامان دو مې
پرما برق غوندې تیریږي په شتاب

دمظلوم له حاله کله خبر اخلي
که سر وکاږم د ترکو تر تناب
په دربار کې که مې سل حله داد وکړم
بهره مند مې یو ځل نه کړي په جواب

شهلا سترګې دې د ترکو جادو ګـ ی
تښتوي د «پیر محمد» له سترګو خواب

«پیر محمد کاکړ»

# خط وخال

معلومیږي ستا دسترګو له غمزو
چې ئې مرګ د تیره تیغ دی دا پېرزو
ستا دسترګو د باڼو ترمنځ حیران یم
یو مې وژني په سره او دبل په ایزو

هومره چه دې خال او خط راسره وکړل
چې ئې داو کښېم لا اوږده په اغزو
ستادزنې په آوزو کې مې حلق تریخ شو
دزقوم په څېر د قندو له کوزو

دستمان د صبر زهد ستا په عشق کې
نخول شي در په در لکه بېزو
چې دي زه په تش لیده وهم له عقله
څه حاجت دزیاتي زور د ستېزو

دښه مخ په واصلاتړ به څه حال وي
چې ئې وواژه (حمید) تشي آرزو

# هنر او ادب

### د اتا زناز یو یچ فت اثر

## بې اعتنا

دښکاري او د کراد کراد ابري کیږي. دا پېرو له منځه داو د لمبې میده میده سروهې او هغو کمبلیو ته ورته دي چې پښېاو لاجوردي وزرو دغاټول دګلونو له پاسه پرواز کوي.

زه اور ته ناست یم او د خپلو ناڅاپي خیالونو سره چې په زړه کې مې پیدا سوي دي بوخت یم، داسې ښکاري لکه دا پېرو له منځه چې پرمبهمې سترګې په مرموز نظر ما ته ګوري.

تېر سوي غمونه او هوسونه د ژنادارړه یادانو په څېر په چیره مینه زما په لټه پسې راغلي دي. خو زما روح چې حتی ماته هم دروا غوایي، د ښکوا په شان ادعا کوي چې ددې ټولو پخو غمو او دردو په مقابل کې بې اعتنا دی.

# دپښتو دنامتو شاعرانو په باب دلایق نظر

### رحمان بابا:

«خرقه پوش دی د شاهانو بې نیاز دی»
سرتر پایه حرارت دی سوزوساز دی
د خیال د باغ دګلو بوه وه مه ده
د جذبو په آسمانونو کې پرواز دی

### خوشحال خټک:

یو سیلاب دی چې له لوړو د اروان دی
دپښتو او پښتنوالي قهرمان دی
«آئینه یې مه بوله غورځنګ د باتدي مکړه»
پس له مرګه هم د تو دی ترجمان دی

### حمید ماشوخیل:

دپښتو د خوږې ژبې یکه تاز دی
په ایجاد د رنګینیو کښې ممتاز دی
په هر بیت کښې نخولي خیالونه
«دده شعر شعر نه بولو اعجاز دی»

# لکه طفل کرم سره اورلره هوس

چې مې زړه ورکی په لاس کښې دناکس
بیا مې بیرته غني وته اید یو خس
جسم د توان، صبر و آرام دا غصه ولاړې
یم ژوندي لکه حباب په تش نفس
په ژړ دا یې فوادم مخ له نادا لیه
لکه طفل کړم سره اور ته هوس
دا نسته په لاس انګار د مینې اخلم
پښېل ځان او د لګوم لکه ققنس
چې دا یادې د سرو لبو شیریني سي
سر وهم په دواړه لاس لکه مګس
له فراقه مې سینه هسي چاك ده
چې حیران ورته چا کو نه د قفس
په تنها کو پښو که هم دیار و خوا ته
هر یې راه په اواز دزړه مې د جرس
هر سړی باندي ګمان کا د مړي
که له لوړي خپتې و تېرم پېر نس
لټومه ګنج د زړه په ویرانه کښې
پروا نه لرم دښمېر په هسس
که په زیات تر دا و بل کوي سودا ده
«شمس الدینه» لېږ کلام در لره بس

«شمس الدین»

د فیض محمد ذباړه

# دافغانستان هنر شپږسوه کاله پخوا

که څه هم د امیر تیمور د ظهور لومړي وختونه د خپل سلف یعنې چنګیز غوندې ژوند په لړزونې

هېواد افغانستان (پخوانی خراسان) کې د ډېرو خرابیو او فتنو او چولو سبب شوه. مګر ترڅو

خرابیو او فتنه ګرۍ ورو وروسته یوه ادامه هم درلوده او هغه توره شپه په روښانه ورځ بدله شوه.

امیر تیمور که د یوې خوا د خپلې بې رحمۍ او زور په سبب ښارونه خراب او د ښارونو ګړی

په ځای له ښارونو څخه شړل او په یوه بې رحمانه برخلیک سره به ئې ټولې په وینو لړلي کولې او د هغو

د سرو څخه به ئې (کله منارونه) جوړول خو د بلې خوا سربېره پر هغه ټوله ظلم او وحشت د هنر

سره مینه او علاقه درلوده کوم وخت چې به ئې د عمومي قتل فرمان صادر وي نو به په هغه فرمان

کې به عالمان او پوهان د دغه امر څخه مستثنی وو.

امیر تیمور د نړۍ د هر ګوټ

نقاشان، معماران، خطاطان، حجاران او هنرمندان راټولول او دې په دې لته کې ؤ چې دده دربار (سمرقند) د نړۍ د ښایسته ښار څخه وشمېرل شي.

شاهرخ چې دده زوی ؤ د خپل پلار په شان ئې د پوهانو، او نقاشانو او د هنر د څښتنانو په تشویق او روزنه کې ډېر

کوښښ کاوه. کله چې به ئې د یو هنر په باره کې څه واورېدل نو هغه هنرمند به ئې راغوښتی او هغه به ئې په خپل دربار کې

ورزی.

شاهرخ زیاته مینه او علاقه د هنر په تېره بیا د نقاشۍ، معمارۍ، خطاطۍ، او

حجارۍ سره درلوده ترڅو وروسته دده زوی بایسنغر میرزا یو دارالصنایع په هرات کې جوړه کړه چې په هغه ځای

کې خطاطان، میناتوران، جلد سازان او صحافان د کتابو په لیکلو او جوړولو بوخت وه.

د حبیب السیر لیکوونکی د شهزاده بایسنغر د هنر دوستۍ په باره کې لیکي:

(...نوموړي شاهزاده د هنر او خطاطانو او معمارانو په روزنه کې ډېر کوښښ کاوه او هغوی ته به ئې څه ناڅه انعامونه

ورکول او هغه به ئې تشویق کول او خوشحاله کول ئې.

د هغه وخت د دارالصنایع د مهمو آثارو د جملې څخه پاته سوی اثر د شاهنامې یوه نسخه ده چې

د ډېرو عجیبو او مهمو آثارو څخه ګڼل کېږي د هغې د میناتورۍ صحنې د هرات د مکتب کار دی او

هنر د عجایباتو څخه بلل کېږي پر دغه نسخه باندې پښپله بایسنغر میرزا مقدمه لیکلې ده چې د بایسنغر

په مقدمه سره شهرت لري.

د مطلع السعدین د کتاب لیکوونکی لیکي څلوېښت تنه

کاتبان د مهمو او نادرو نسخو په لیکلو اخته وه چې مشهوره ئې دا دي:

مولانا ظهیرالدین اظهر، شهاب الدین عبدالله، جلال الدین، شمس الدین هروي او اصفی

هروي.

بایسنغر سربېره پر دغه چې د هنرمندانو او خطاطانو سره ئې

زیاته علاقه درلوده پښپله ده په ثلثي خط کې ساری نه درلود ده د (ګوهر شاد) د معروف مسجد

او شتې په خپل خط سره لیکلې دي او یو قرآن مجید ئې هم په ثلثي

خط چې دوه نیم متره دی لیکلی دی. او شاهرخ د خراسان د یوه کال مالیه د ده د دغه زحمت په بدل کې

ورو بخښل. پروفیسور ادوارد براون د دغه هنر پالونکي شهزاده په نیکۍ

یادونه کوي دی دا چې د کتابو د مینانو ځنه بولي. په دغه وخت کې وچې په هرات کې د نقاشۍ مکتب پخنګي ته ورسیدی او

د «غنائي نقاشۍ» عالي ترینو مظاهرو د هغه ځنه هر لور ته پلوشې خپرې کړې او تکړه هنرمندانو

د هنر په ساحه کې په هنرازمو پلو ګوتې پورې کړې.

د هرات د هنري مکتب اساس

شاهرخ او بایسنقر میرزا ایښی دی. د نقاشۍ هنر ته شیخ زاده محمود او اقامیرک نور هم پراختیا

ورکړه تر څو چې سلطان حسین میرزا بایقرا پاچا سو.

دغه هنردوست او علم خوښونکی

د خپل یوه وزیر امیر علیشیر نوائي په مرسته د نوموړ عمل دیاره د هرات هنري مکتب ته توجه وکړل

او هغه مکتب ته ئې نوی او تازه رنګ ورکړ.

د دغه پاچا په وخت کې چې ۳۳

کاله ئې پاچهي وکړل د افغانستان د ترقۍ مرکز په هغه وخت کې د هرات ښار و. چې دغه ښار د علم

او هنر له حیثه د اوج نقطې ته ورسیدی او په دغه وخت کې ډېر

بې ساري هنرمندان وروزل شول او څو بریښه اثار ئې د یادګار په ډول پرېښودل چې دغې دوی

هنري اثار ئې د هر زیم د افتخار او سرلوړی مایه ده او لازمه ده چې د دې دورې هنرمندانو او

د هغو په آثارو فخر وکړو.

د دغې دورې د لوی هنرمندانو د جملې ځنه یو هم استاد

کمال الدین بهزاد دی چې د هرات مکتب ئې د ښکلا ظرافت او ډېره کارۍ په لحاظ

د کمال درجې ته ورساوه او هم دغه رنګه د دې دورې نور هنرمندان عبدالصمد، سلطان محمد، محمود

مذهب او جلال الدین یوسف او داسې نور دي چې دوی هم د هرات په مکتب کې تربیه سوي دي او د دوی

په اثارو دنیې موزیمونه ښایسته سوي دي.

د سلطان حسین بایقرا او امیر

علیشیر نوائي زیاته توجه او پاملرنه د هرات په هنري مکتب کې د نوابغو او هنرمندانو د روزنې سبب

سو چې د بوشمیر نورو هنري مکتبو د ظهور منشا وګرزېدل. لیکل سوي دي چې د بهزاد په دارالصنایع کې

د روځې څلوېښت کسو په نقاشۍ، تذهیب، تجلید او صحافۍ کې په کار بوخت وه.

هغه هنري بدایع چې د دې دورې ځنه موږ ته را پاته سوي دي زموږ د هنر او ادب افتخار بلل کیږي.

## د ملتو متلونه

برلټ پسه خپل ورډه ی باروي.

(سکاټلینډي)

بدګومان د ایمان ژیان دی.

(پښتو)

لویه اشتباه په واده کې تلوار دی.

(فرانسوي)

اوږد ژمی میوه ده.

(ازبکي)

چې او ډیغ نه وي باران نه اوري.

(الماني)

تلواري سړی د ځان دښمن دی.

(ایټالوي)

هغه کوچنیان چې په کوچنیوالي

دروغ وایي نو په ځوانۍ کې غلا کوي او سپین ږیروالي کې قتل کوي.

(یوناني)

---

## دا ناممکنه ده

یوې میرمنې د ادارې رئیس ته ټیلفون وکړ. تر زنګ وهلو وروسته

د ادارې رئیس د ټیلفون ګوشکه پورته کړه. او میرمنې د ټیلفون ځنه ورته وویل:

ښاغلی رئیس ستاسې د ادارې د غړي ښاغلي «سمیت» خواښې یم. اجازه ورکوئ چې څو دقیقې د هغه سره خبرې وکړم.

رئیس: متاسفانه دا ناممکنه ده.
میرمن: ولې په څه دلیل؟ رئیس: ځکه چې ښاغلي سمیت یو ساعت د مخه ستا

د جنازې د کېدون د پاره د ادارې ځنه رخصت واخست.

**تهیه کوونکی : میرمن ملاله**

# هلن کلر



هلن کلر یوه داسې میرمن تېره شوې ده چې د اوسني پېړۍ په نړۍ کې یې ډېر شهرت موندلی دی او ډېر لږې میرمنې لیدل کېږي چې د هلن کلر په شان د کلک فکر او پوره عزم څښتنې وي. هلن کلر د یو ژوندي احساس خاونده وه، هغې د امریکا ټولو لاېټونو او د یورپ ځینو هېوادو ته سفر وکړ او په خپلو کړووړو او علمي وینا وو خلکو ته د پاکې صمیمیت او مرستې د ډېرو لارښوونه وکړه او په دې لاره کې یې اوچت ګامونه واخیستل.

هلن کلر په (۱۸۸۰) عیسوي کال کې په یوه امریکایي کورنۍ کې زېږېدلې یو کال او څو میاشتې یې د یوې معصومې انجلۍ په حیث طبیعي ژوند کې هلن لا د ژوند د دوه کلنۍ ته نه وه شامله شوې چې سختې ناروغۍ حمله پر راوړه. په نتیجه کې یې د اورېدلو، لیدلو او لوستلو قوه او احساس د لاسه ورکړی او د خارجي جهان سره یې رابطه وشلېده وروسته له دې پېښې څخه د مور او پلار لخوا د ړندو ښوونځي ته ولېږل شوه او تربیه یې د یوې پېغلې پر غاړه چې (مانسفلډلوسیوان) نومېده واچول.

د یوې میاشتې زیات کوښښ او زحمت څخه ښکلې او مهربانه مانسفلډ په دې بریالۍ شوه چې د کمکۍ هلن په مقصد، پوه شي او هم یې خپل مقصد هغې ته وښودي او په دې ترتیب سره یې د هلن تربیه پر غاړه واخیسته.

هلن ترنه کالو پورې کمکۍ وه هیڅ خبرې یې نشوای کولای. خو بیا هم ښوونه ورته کېده او په دې ترتیب سره یې جریان درلود. د هلن د غږ زده کړې په دوران کې ښه پوره استعداد ښکاره کړ، لیکل او لوستل یې د غټو حروفو په ذریعه زده کړل. څنګه چې خپل ټول وخت یې په مطالعه تېراوه څنګه نو د عمر په دوولس کلنۍ کې د زیاتو معلوماتو څښتنه شوه.

پس له دې څخه خپلې مهربانې ښوونکې په مرسته د رادکلیف ښوونځي ته داخله شوه پس له لږ مودې څخه په بریالیتوب د دغې اکاډمۍ څخه فارغه شوه.

هلن کلر خپلې ټولې لیکنې او مقالې د یوه تحریري ماشین په ذریعه چې د کاغذ پر مخ باندې یې غټ او برجسته حروف ایښودل، لیکلې او هر وخت چې به یې کومه کلمه صحیح کوله نو د سنجاق په واسطه به یې د کاغذ مخه پرڅه سوری کوله. د هلن د لامسې حس ډېر قوي ؤ.

هر وخت چې به یې خپلې ګوتې د شیانو سره موښلې نو پوهېده چې نوموړی شی څه وایي هم دارنګه یې د راډیو، ګرامافون او نورو موسیقیو پارچو آواز په ګوتو سره اورېده، کله به یې پنځه کاله وروسته د یوه شي سره مجلس کاوه او خپل ګوتې به یې د هغه پر شونډو او کښېښودې. نو هلن پوهېده چې دغه نفر څوک دی او کوم وخت یې مجلس ورسره کړی دی.

هلن کلر د ژوندانه په ډګر کښې ډېر زحمتونه او مایوسۍ لیدلې دي خو بیا هم هلن کلر د ژوند تر پایه پورې ناامیده نشوه او د ژوندانه ټولو مشکلاتو بیا هم ونشوای کړای چې هلن د خپل اساسي هدف څخه را وګرځوي.

هلن د یوه هسک روح خاونده وه. هغې ټولو خلکو ته د نیکو اعمالو او بشرپالنې مقدس درس ورکاوه. ناامیدي او مایوسي هغې ته شکست ورنکړ او د ژوندانه هیڅ ډول

«پاته په ۲۶۹ مخ کې»

ژباړه

# په بلغاریا کې د ښځو نهضت

د ښځو او نارینو د حقوقو مسئله دنړۍ تر دوهمې عمومي جګړې وروسته د بلغاریا دمهمو مسئلو څخه وه. د بلغاریا دقانون په ۶۳۲ ماده کې تاکید شوی ی چې ښځې او نارینه دیوشان او مساوي حقوقو درلودونکي دي د بلغاریا دولت د ښځو درفاه او دښو شرایطو دمنځ ته راوړلو دپاره هڅه کوي. د بلغاریا ښځې د کار او استراحت د حقوقو درلودونکې دي. او د ټولو هغو حقوقو درلودونکې دي چې نارینه ئې لري.

د بلغاریا دولت د کار، زده کړې، ازاد انتخاب، شغل او پرمختګ مناسب شرایط د ښځو دپاره منځ ته راوړي دي او ښځې په خپل منځ کې د ترقي او پرمختګ پولوی او پراخ میدان وینې. کار کوي، زده کړه کوي او ترقي کوي. دوی د هغه کار په مقابل کې چې سرته ئې رسوي د نارینه وو سره یو ډول اجوره اخلي په دې وختونو کې هغه سریع فعالیتونه چې په بلغاریا کې صورت مومي د ښځو مناسبات د هغو د کارو سره هم تغیر مومي.

یوه بلغاریا ئي ښځه اوس په دې حقیقت پوه ده چې هغه الهخیز فعالیتونه د ژوند په بیلو بیلو څانګو کې ددوی د تکامل لار نوره هم خلاصوي او ددوی شخصیت دیوه کامل او دحقوقو سره د برابر انسان په عنوان تثبیتوي.

په اوسني بلغاریا کې ښځې دهیواد په ټول کې پنځوس فعاله غړي تشکیلوي چې دژوند په بیلو بیلو ساحو کې په کار اګیا دي ددې دپاره چې د ښځو او نارینه وو د کار د قدرت څخه په ښه او مناسبه توګه استفاده شوي وي او ښه ترا مناسب شرایط دفني چارو د اجرا په مکله منځ ته راسي د بلغاریا د اجتماعي خدماتو وزارت په دې وروستیو وختو کې د روغتیا دوزارت او د بلغاریا د مرکزي شورا په موافقه د هغو کارو لیست چې ښځې کولای شي هغه سرته ورسوي تنظیم کړی دی.

او دا په حقیقت کې یوه ګټوره مرسته ده چې د ښځو سره شوې ده. په دې ترتیب به ددوی د قدرت څخه ښه ترا استفاده وشي.

ښځې به خپل میل کولای شي خپل دعلاقې وړ شغل انتخاب کړي. په دې ځای کې بوازې شي د کار د شرایطو په نظر کې نیول دي یعنې هغه شرایط چې ددوي د بدني قدرت سره مطابقت لري.

سربیره پر دې چې د بلغاریا ښځې دپاره ډیرې اسانه کارونه په نظر کې نیول شوي دي، خو بیاهم معاش ورته په نظر کې نیول شوي دي چې یوه سړی ته ور کول کیږي. په نورو کارونو کې چې په لیست کې نه وي نیول شوي بیاهم په مساوي حقوقو استخدامیږي. طبیعي ده چې که ئې دا کار زده کړي، تخصص او قابلیت سره مطابقت وکړي ګټور نتایج به تر لاسه کړي.

یو بل ګټور عمل چې د ښځو د هوساینې دپاره په نظر کې نیول شوی دی د کار د ساعتونو لږوالی دی د هغو ښځو دپاره چې اولاد لري او یا دا چې د کورني مسئولیت په بلغاریا کې ټول معاشونه پوره ول دي «پاته په ۲۷ مخ کې»

# ځوانان

تهیه کوونکی: رحمت الله «مروند»

## ځوان نسل او جمهوریت

د ټولنې ټولو افرادو په تېره بیا ځوانانو په هېواد کې د جمهوریت د تأسیس او تحکیم په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ځان نه دی ژغورلی او باید همداډول وي ځکه هغه څه چې موږ ته په دغه نظام کې په ډېر لږ وخت کې مهیا سوي او مهیا کېږي د هغه تصور په خوب او خیال کې لا هم ناممکنه ښکارېدی.

همدغه ځای دی چې د ټولو هېوادوالو په تېره بیا د ځوانانو د خوښۍ او خوشحالۍ د اندازې له پاره کوم معیار نسو پیدا کولای دا ځکه چې له ډېرې مودې راهسې زموږ ځوانان د بولې شکنجو او روحي ناآرامیو سره لاس و گرېوان وه خو د جمهوریت له تأسیس سره سم د دوی د ژوندانه کښتۍ یو ځل بیا په حرکت راغله او په قوي عزم او ټینگه اراده سره د هېواد والو صادقانه خدمت کولو ته چمتو سول.

لکه څنگه چې زموږ ملي مشر او د دولت رئیس ښاغلي محمد داؤد د جمهوریت د تأسیس په لومړي وختو کې د هېوا د لوړ تیا او پر مختگ د دې هېواد د هر اوسېدونکي وظیفه وبلل نو همدغه وجه ده چې د هېواد وهر وګړي ته موقع ورکړه سوې څو د دغه ځوان او مترقي نظام ته چې زموږ د ټولو آرزوگانو پکښې نغښتې دي تر وسه وسه خدمت وکړي.

گرانو ځوانانو موږ ټول باید په دې ټینګ ایمان ولرو چې د جمهوریت د ډیمو کراتیکو قوانینو په رڼاکې به زموږ ځوانانو ته د صادقانه خدمت کولو او عالي تحصیلاتو د بشپړولو له پاره هیڅ ډول سد واقع نسي بلکه هیچا ته به دا اجازه ورنه کړی چې د زحمت کښو او بېوزلو خلکو حقوق غصب کړي.

څو په تېر زاړه او منسوخ نظام کښې و دغه اصل ته هیڅ توجه نه وه سوې یعنې بېوزلو کسانو ته که څه هم اهلیت او لیاقت به ئې درلود د کار کولو زمینه نه برابرېدل همداډول په هغه نظام کښې شخصي گټې پر ملي گټو باندې غوره گڼل کېدلې. خو له نېکه مرغه د جمهوریت په را تللو سره داډول نه ده.

اوس نو پر هر ځوان دا لازمه ده چې هېواد وال د جمهوریت د ډیمو-کراتیکو او ارزښتناکه قوانینو څخه خبر کړي او وطن خرڅوونکو او شخصي استفاده کوونکو عناصرو ته د خیانت کولو موقع ور نه کړي.

گرانو ځوانانو!

را تلونکي دو چانه ژوند او پر مختگ ستاسې او افتخار ئې هم ستاسې دی نو راسئ چې یو له بله د اتحاد لاسونه ورکړو او په صداقت سره د نوي جمهوري نظام د خدمت کولو له پاره په پوره ایمانداري ملاوې و تړو او د هېواد د ترقي او پر مختگ د پاره په نه ستړې کېدونکي ډول عملي وکړو څو د گران افغانستان د جمهوري هېواد مقدس بیرغ د تل له پاره لوړ وساتو.

# کم جرئتي او د هغه د ليرې کولو طريقه

کم جرئتي يوه روحي مسئله ده چې په زياترو ځوانانو کې ليدل کېږي ځکه چې د ځوانۍ په وخت کې شخصيت د بشپړېدو او تکامل په حال کې دی او امکان لري چې بيل بيل عوامل د هغه په ښکاره کېدو کې اغېزه ولري.

يو عامل چې د انسان په کم-جرئتۍ کې اغېزه لري د خپل ځان کم ګڼل دي چې له بده مرغه په غير مترقبه ډول ور باندې اخته کېږي او سړی تر هغه وخت ځان کم ګڼي کېږي چې ښه قيافه او مناسب اندام ونه لري يا کوم ځای يې عيبي وي يا ئې د کورني حالت ګډوډ وي يا يو مجرم ته منسوب وي يا له ماتې او ناکامۍ سره مخامخ شوی وي.

ځيني ځوانان که چېرې له دغو عواملو څخه د يوه تر تاثير لاندې راشي نو بې جرئته کېږي دوی ته يوازې دا چې په يوه خونه کې خبرې نه شي کولای او د ډېرو لکي او د خپل ټولګي د ملګرو په منځ کې نه شي ږغېدلای بلکه د خپلو دوستانو په منځ کې هم خپله نظر يې نه شي ښکاره کولای. کله چې په خبرو پيل وکي ښه يې وا لوځي او کله کله يې لاس او پښې رږدي او په هيڅ ځای کې يې ژبه بنديږي سره له دې چې داسې کسان ځان يوازې ګڼي او داسې تصور کوي چې ټول له ده، د بيمګې تياوو ته متوجه دي او ده ته په سپکه سترګه ګوري.

کوم ځوان چې د حقارت احساس کوي نو له دې څخه چې په ځان پوه شي په دې فکر کې وي چې ګواکې خبرې يې بې ځايه دي او نظر يې بې ارزښته دی که چېرې څرګند کړي نو خلک به ور باندې وخاندي يا دا چې فکر کوي د نظر يې د ښکاره کولو اهليت نه لري که چېرې کم جرئتي له دغې عقدې څخه پيدا شوې وي نو د حقارت د عقدې په له منځه وړلو سره کم جرئتي هم له منځه درومي.

امکان لري چې کم جرئتي له کورني روزنې څخه پيدا شوې وي. ځيني مور او پلار دا عادت لري کوم وخت چې کوچنيان يې د کورني له غړو يا ميلمنو په منځ کې په خبرو پيل وکړي نو منت ور باندې کوي او له خبرو څخه يې ژغوري، دوی خپلو کوچنيانو ته دا حق نه ورکوي څرنګه چې غواړي خبرې وکړي هر وخت چې خبرې کوي مور او پلار يا مشر ورور او مشره خور يې له خبرو څخه منع کوي نو دغه ډول کوچنيان چې کرار کرار او تېزې لومړۍ د خبرو کولو سره بې علاقې کېږي او د حقارت عقده يې زياتېږي او په پای کې خپل جرئت له لاسه ورکوي.

کم جرئتي به هر ډول چې وي او له هر څه نه چې پيدا شوې وي د ډېرې انديښنې وړ نه ده خو په دې شرط چې د هغه د له منځه وړلو د پاره اقدام وشي.

هغه ځوان چې په کم جرئتي اخته وي بايد په دې پوه شي چې يوازې دی د دغه مشکل سره نه دی مخامخ شوی بلکه هر انسان په ژوندانه کې له ځينو پېښو سره مخامخ کېږي چې په سړي باندې بيلې بيلې اغېزې کوي او کله کله د کم جرئتي په څېر مشکلات پيدا کوي نو په دې صورت کې امکان لري چې ځيني ځوانان له دغه مشکل سره مخامخ شوي وي.

لکه چې پوهېږو د غه زموږ په باره

«پاته په ۲۷ مخ کې»

(د۱۵۵مخ پاته)

# اگزیستا...

چې د داسې موضوعاتو سره ځان مشغول کړي. ترڅو چې د ذات د اصالت مرحلې ته ورسېږي.

گویا وجرد په مذهب انسان باطني او درونی موضوعاتو ته درا بولي.

د اگزیستانسیالستانو نظریات د نفس د اساس او ماهیت یا باطن په باب ډېر سره ورته دي. په دې مذهب کې د انسان شخصیت او نفس مرکزي مقام لري.

لومړی او اساسي موضوع چې دوی پې غږېږي د انسان پیدایښت او انتها د ك کېږي.

د دې ډلې په عقیده د انسان نفس حقیقت بدل کېږي چې پر ټولو او نورو شیانو باندې برتري لري د ډیکارټ فارمول چې وایي «څرنگه چې فکر کوم نو موجود یم» د دوی په عقیده نسې کولای انسان حقیقت ته نږدې کړي.

د دې مذهب پیروان د نفس ماهیت ته عقیده لري. نفس یو مفهوم یا بوشی نه دی، بلکه ترڅه ځایه چې فعل او عمل و لري ډېر ناميکه هم بدل کېږي.

د نفس یو بله چېگڼه دمفوي په عقیده د آخري (غایي) علتونو د حکمت او وآینده ته د کتلو څخه عبارت ده.

هیدیگر او جاسپرز په دې عقیده دي چې انسان یو د راتلونکي قوت، یو انگیزه او یو دوام داره جوش دی «دی یو موجود دی چې تر خپل ځان ډېر دی...»

داسې موجود چې تل ترڅه چې «عجالتاً وجود لري» ډېر دی که څه هم هغسې چې باید داوسی تر اوسه لاهغې مرحلې ته نه دی رسېدلی.

د مذهب پیروان د «زمان» موجودیت یو غیر حقیقي امر بولي مگر د «زمان» څخه یې د داسې (وخت) مقصد نه دی چې تل تېرېږي بلکه د دوی مقصد حقیقي «زمان» دی.

دوی وایي چې یوازې او یوازې نفس دی چې کولای شي د تغیراتو تر تاثیر لاندې راشي او د حقیقي زمان په څېره کې ژوندی پاتې شي.

ځکه نو د ساکنو شیانو زمان د نفس د زمان سره توپیر لري.

«موږ نشو کولای داسې تصور وکړو چې د انسان نفس لکه د نورو ساکنو شیانو د نفس غوندې زمان به اوږدو کې ودك سي.

زمان د هغه په دننه کې دی، که ترڅه د باندې... په داسې حال کې چې د ساکنو شیانو زمان بردرو یعنی «تیر»، «اوس» او «راتلونکي» باندې وېشل شوی دی. نو د تیر یا ماضي انسان، د اوس او د راتلونکي انسان «زمان» د یوه کل په توگه جمع کېږي یعني انسان د یوه داسې دریځ څخه بر ته چې نور شیان یې لري په یوه بل دریځ «موقف» کې درو ی. ځکه چې انسان د تصمیم او فیصلې قدرت لري، په داسې حال کې چې شیان د یوالې ترادفاتو متضمن دي.

د دې تعریف له مخې یو فرد یو تاړکه ډېره بایوه او نه د هغه په واقعي معنی سره د زمان د شرایطو واجد (پیدا کوونکی) نه دی، تصمیم او اراده ده چې و انسان ته قوت ور بخښي ترڅو چې خپل سرنوشت په خپل لاس کې واخلي خپل تیر سوی حالت هم باید قبول کړي داسې نه چې خپله ماضي د یوه درانه ار تغیر نه منونکي بار په توگه حس کړي.»

(نور بیا)

«۲٤مخ»

د فدا خوار یکښ ژباړه

# طبیعت او ټولنه

طبیعت څه شی دی؟ طبیعت د څو پروسو مجموعه ده چې په طبیعي توګه یعنې د انسان د فعالیت د تاثیر څخه پرته جریان لري او ټول له فزیکي، کیمیاوي، بیالوژیکي جیوفزیکي او داسې نورو پروسو په بر کې نیسي د خوځښتونو د انسان تر پیدا ښت چې پره موده پخوا وجود درلود او دوام لري هم اوس لري او ټول له فضا او له هغه ځایه څخه زموږ د سیارې محدود د طبیعت په بر کې نیسي. طبیعت د انساني ټولنې د پیدا ښت ضروري مقدمه ده ځکه انسان د طبیعت عالي محصول، د هغه یوه برخه او د هغه د قوانینو تابع دی. د نورو طبیعي ژوندیو او یا ناژوندیو موجوداتو سره د انسان توپیر دا دی. چې یوازې د طبیعت تابع نه دی بلکه په هغه کې تغیر راولي هغه د خپل مقصد تابع کوي او د طبیعي شیانو او پدیدو په ځای کې مصنوعي شیان او پدیدې منځ ته راولي هر څو چې طبیعت د انسان تابع کیږي تر استفادې لاندې نیول کیږي تازه کیفیت مومي او انساني کیږي د هغه طبیعي محیط چې انسان ته یې خدمت کړی دا ولي په خپله د یوه نامتو پوهاند خبره د انسان په غیر ارګانیک بدن او. د ده وجود په یوه برخه بدلیږي انسان پخپل کار سره یو دوهم طبیعت چې بشري فرهنګ نومیږي منځ ته راولي چې د هغه د ټولنې شیان او پدیدې پخپله طبیعت په خپل خود بخودي سیر سره منځ ته نه سي راوړلای د هغه اصل دا معنی نه لري چې پر انسان باندې د طبیعت د دغه والي اساس د منځه ولاړ دی. ځکه اول طبیعت تر انسان د مخه وجود درلود دوهم انسان یوازې او یوازې، په خپله د قوانینو په چوکاټ کې پر هغه تاثیر چنداني لاسي د غه پوهاند وایي: انسان د کار په جریان کې د شیانو د میخانیکي فزیکي او کیمیاوي خواصو څخه استفاده کوي تر څو چې د خپلو هدفونو سره سم د هغوی څخه پر نورو شیانو د تاثیر دوا رد ولو د افزار په توګه استفاده وکړي.

د طبیعت او انساني ټولنې د دیالکتیکي مناسباتو شاخص په دی کړ دی چې د طبیعت په بدلون ور کولو کې د انسان د تاثیر اندازه او خپلې ارادې ته د هغوی تابع کول هر کړی مخ پر زیاتیدو دی او هر کړی د جهان او کائناتو پراخې ساحې د انسان او انساني ټولنې د تاثیر میدان ته داخلیږي کیږي او دغه بهیر پایه جریان دی.

ننن ورځ د خپلې سیارې ځمکې) څخه د هغې په ټولو ساحو فضا، او چاپیریال کې عملاً استفاده کوو موږ نورو ته ځمکې او فضاوو ماخواته ګام ایښی دی.

د انسان په وسیله د طبیعت تابع کول یوازې یوه فني مسئله نه ده، چې د تولیدي قواوو په وده دی اړه ولري بلکه په عین حال کې تازه اجتماعي مسایل منځ ته راوړي طبیعت د تصرف په درجه د تولیدي قواوو او تولیدي مناسباتو د تکامل په سطحه او دیش د علمي پوهې په درجه اړه لري.

---

## غوره وینا وې

په مال او دولت سړی ته شریف کیږي او په تواضع سړی ته عاجز کیږي.

✡ ❁ ✡

ایمانداره تجار د عبادت کوونکي ته بهتر دی.

(د ۸ مخ پاتې)

# ډرامه او...

هوښیاران وایي چې علم او پوهه د نورو نه واخلئ خو تهذیب خپل وساتئ او خپل تهذیب په نورو

تهذیبونو کښې مه ورکوئ، موږ هم خاصه کلتور او پښتني تهذیب لرو چې د نړۍ له تهذیبونو څخه که پورته

نه وي نو کښته هم نه دی. یو قوم په هغه وخت کښې خپله هستي او موجودیت له لاسه ورکوي چې تهذیب یې

د نورو د لاس آله شي او یا ومري بله دا چې هغه ډرامې او افسانې زیاتې ګټورې نا پښتو-لاي شي چې

زموږ د خپل تهذیب نمایندګي کوي. هغه کوم تاثیر او قوت چې په افسانو او ډرامو کښې پروت دی

هغه په هیڅ تقریر او بیان کښې مثال نه لري.

زموږ لیکوال دې ځکه ته باید

ډیر پام وکړي او په دې وسیله د خپل ادب فولکلوري اغځ ژوندی وساتي.

پښتني ژوند او ماحول له ډیرو خوږو افسانو او ډرامو څخه ډک دی د (آدم خان او درخانۍ،

موسی خان او ګل مکۍ، فتح خان او رابیا) او داسې نور تاریخي افتخارات لرو چې باید نورو ته

د ډرامې او افسانې په شکل وښودل شي.

دا کار پر فایدې ده او

زیاتې ښکلې پکښې پرتې دي زموږ د ملي شهامت د ژوندي کولو سره ځوانانو او ننداره

کوونکو ته د عبرت درس ورکوي او د نړۍ تهذیب د پښتنو سره یې ښه آشنا کړي. ترجمه: قتیل خوږیانی

(د ۲۰ مخ پاتې)

# هلن...

ترورو سته د شپږ پوړي هلن خوا بدی مقلوبه نکړه. هلن په ژوند کې د عمر په موجو کښې پورته او

کښته کیدله، لیکن تر پایه یې پوره تی خان تسلیم نکړ.

هلن یوو اس کتابونه او په

زرو مقالې لیکلي دي. هلن زما د ژوند د سرګذشت په کتاب کې دا رنګه لیکلي:

هغه وخت چې مې د لومړي ځل

د پاره دمو د جملې پر شونډو را وډه او بیا مې ویل هیڅ چا

ګنګه نه یم. تو یو داسې احساس او خوشحالۍ حمله را پاتې دی

داو ده چې په دنیا کښې به یو ما شوم هم دا هوي لیدلي او نه

به یې احساس کړي چې زه وي د هغې ورځې هغه ماديوي مرغۍ مثال

درلود چې تازه یې وزرونه پیدا کړي او د لمر د تودوښې ولوړ ته په الوتنه کې وي او د ډیرې خوښۍ

هغه دوې د بوی ځانګی هغه وبلی ځانګی ته الوتنه کوي...

ارزه په یوه کامل ایمان او پوره واك سره لکه ځول خالك وهر شي ته د بصيرت په سترګو ګوري

او په پای کې هغه ځای ته رسیږي؟ چه ملکوتي روح؟ په ما ځلیږي او وینی چې مرګ د یوه ابدي ژوند

شروع ده.

هلن کلر د ښي ی دې ته واو کښو انسانانو لپاره د لیك لیکو لو او سواد طریقه منځ ته راوړه.

هلن د یوه علمي شخصیت له مخې په جهان کې خپله علمي حیثیت وګاڼه یا په بله ژبه د لومړي ځل لپاره هلن وه چې په جهان کې یې د ړندو خلکو یو مولو لپاره دقدرو لاره منځ ته راوړه.

ښه دا چه هلن کلر تر پایه پوري د ژوند په هغه کښې د مشکلاتو او ستونزو په مقابل کې په پوره ایمان سره او په ډیره زړه ورتیا جهاد وکړه او ژوند تر آخره یې ملکي پوري ږې ښکاره ت چلوا وه.

د هلن کلر د آثارو څخه زما سرګذشت، د هلن عقیده نیا په باره کې چه موږ ژوند پکښې کوو، خوشبیني زما دین او زما دیاد داښتو دفتر پر مشهو ردي او په ګڼو ژبو ی کې ويو نکي لري.

# دمځکې نفوس

د څو مو دې د احصا ئې له مخې د مځکې د کرې نفوس دري ملیاردو او څلور سوه شل میلیونه په شا و خوا کې اټکل شوي وو. د مځکې د کرې په نفوسو کې هر کال تقریباً د ۶۰ میلیونو په شا و خوا کې زیاتوالی راځي او په دې ترتیب

که هر کال د مځکې د کرې په نفوسو کې په همدې اندازه زیاتوالی راشي نو ښايي چې په ۲۰۰۰ میلادي کال کښې د مځکې

د کرې نفوس دوه چنده شي.

(د۲۳مخ پاته)

# کم جرئتي او دغه دلیري...

کې په خپله زموږ نظر په دې چې په موږ کې د لوی والي یا کوچني‌-والي احساس پیدا کوي یعنې که

چېرې موږ داسې فکر وکړو چې له نورو سره سم نه یو او ایمکې-تیاوې لرو نو همدغه فکر د دې

سبب کېږي چې د خپل ځان په باب په همدې ډول فکر ولرو او د نورو څخه ګرځو سر.

هر ځوان باید په دې حقیقت پوه شي چې ټول خلک بدنه دي او هر څوک د نورو ایمکې تیاوو

د هر ګنډ ولو په مخه کې نه دي خو کوم څوک چې په یوه رنګ لکه د کم جرئتي په رنګ اخته وي

همداسې فکر کوي، د مثال په توګه فکر کوي چې دغه د ټولګي ملګري د ده خبر او جواب

ورکول ته متوجه دي او ټولګي هم هیڅ پروا نه کوي چې دې ته تکلیف لري او ورسته هم ورسره

نه کوي خو حقیقت دا دی چې ستاسو ټولګي او خپلوان نه پوهېږي او نه دې خبر چې تاسې څه مشکلات لري یوازې تاسې په خپلو

مشکلاتو پوهېږي او ورو باندې خبر یاست او تاسې په خپله باید دغه ټولګي، دوستانو، مور او

پلار ته وویاست او دغه په باره کې ورسره خبرې وکړئ.

هر څوک چې په هره اندازه

ایمکې تیاوې لري په هره اندازه په چې خو یو نه هم لري خو اساسي مشکل دا دی چې خپله موږ دغه

ډول خو یو نو ته متوجه کېږو او یوازې دا کوچني کور چې خپلو منفي اړخو ته فکر وکړو.

تاسې باید په خپلو د خو صفتونو او خویونو پوه شئ او په دې هم پوه شئ چې هر څوک په بېلو بېلو وختو

کې دغه ډول مشکلات لري خو له منځه یې وړي.

تاسې سر له اوسه تصمیم ونیسئ

چې دغو دلیري کولو د پاره په عملي توګه اقدام وکړئ او په دې لاره کې له بل چا څخه بېر ته پاتې نشي.

تاسې چاته و او سې ه چې په لږ موده کې ستاسې ټولې دغه مشکلات لیرې کېدونکي دي.

(د۲۱مخ پاته)

# په بلغاریا کې...

څنګه لکه ناروینه نظر د دغه کار د کمیت او کیفیت له مخې چې سر ته لی دسوي اجوره اخلي. د معاش زیاتوب لې د شغل

په تخصص او ارتقاء پورې اړه لري باید وزیاتوو چې د بلغاریا دولت د ښځو د حوایجو د زیاتوب په هکله تل

سعي کوي څو د کار پیدا کولو پر نسبت د ښځو په هکله چې ترا تطبیق او عملي سي.

د ښځو کورنیو اړتیاوو ته پاملرنه د دوی د ارتقا د پاره مناسب شرایط برابر وي او په دې نسبت مختلف

فارمولونه ازمویل کېږي څوځکي د کار په ساحه کې د اسې الکیاسي چې د کورنو وظیفه هم ځني یا ته نه سي او خپل

د بوهنی او تخصص سطح هم په کافي اندازه مخ ته یوسي.

## د نړۍ تاریخي اثار

انګلستان: د لندن برج، دویستي منستر کلپ او د انګلستان پارلماني ماڼۍ.

ایټالیا: د پیپه عبادتګاه او د سنت پتر کلیسا.

د هندوکش د غرو د سلسلې سره مخامخ شول چې د دوی سفر ئې زيات مشکل کړ. د هندو کش د غرو په

امتداد د پامير خوا ته چې د دنيا بام دی ولاړل چې طبعاً د دغه ځخه تيريدل څه آسانه کار نه دی ځکه

چې مارکوپولو وائي «دوه ورځې په مودغا ترو په وسيله د پنځه ځخه تر شپږ ميلو پورې لارطی کول —

ځکه دا ځای په پوره اندازه يخ او لوړ دی چې لوړ والی ئې (۱۵۰۰۰) او پنځه سوه فټه ته

رسيږي او د لوړو قلو او څوکو جګوالی ئې (۱۹۰۰۰۰) فټو ته رسيږي. خو په هرقسم چې وه دی

لياری ئې هم تير او ځان ئې کاشغر ته ورساوه چې د هغه وخت د خورا سرسبزو ځايو څخه حساب

کيده او د انګورستان په نامه يادېده — يعنې ډير اعلی انګور په دې سيمو کښې پيدا کيدل چې

د هغه د خوند خاطری ترمرګه پورې د مارکوپولو په مغز کښې پاتې وی.

مارکوپولو نه يوازې د کاشغر څخه خاطری لری بلکه د افغانستان د بلخ د پامير او

بدخشان څخه ئې هم نه هيريدونکی خاطری درلودې چې دی وائي: بلخ ډير ښه ښکلی او ښايسته ځای

دی — چې ښې منظری لری. مسجدونه — مدرسې — کاروان سرايونه ئې د توجه وړ دی. که څه هم د چنګيز د وخت خرابې او

د قتل عام اثرات تراوسه پورې پکښې ليدل کيدل خو بيا هم ډير ښه ځای دی او خلک ئې ډير صميمی او دوستانه دی

د هندوکش د لياره نه تيريدل او پر لوړو غرو ختل څه اسان کار نه وو نو ځکه ژمی ئې لباره ښه خاطره ده — په دې مناطقو کښې

هوا ډيره سړه ده چې حتی په ځينو ځايو کښې ئې هوا دومره سړه ده چې موږ د غذا پخولو لپاره اور نه بلول او د اور حرارت

د زيات يخ په اساس بی تأثيره شوی وی. د دغه موږ د خلکو عجيب او غريب ژوند وليدی: ډير ساده لباس اغوندی — او

پر غوګانو او کاميلو باندې څانګې سپريږی د پامير د غرو سلسلی او لوړ ځايونه هم ډير عجيب ځايونه دی.

د دغه ډير په زړه پورې شيان چې مونږ ئې وليدو غره لوی بسونه دی چې غټ ښکرونه لری او د پسه ښکروالی ئې څلور فټو

ته رسيږی او ډير ښايسته دی.»

له هغه دا چې پولوګانو د کاشغر ته ورسوی چې د چين د سيکيانګ په غرب

کښې پروت دی. ارد هغه ځايه د يوسل پنځوس ميلو په طی کولو سره د (يارقند) ته ورسيدل او د دغه ځايه څخه بيا د

(مينتاګ) د دری له لياری د کشمير ته داخل شول.

چې د کشمير ښار ئې هم ډير خوښ

شو يدی. پولوګان د کشمير د ليدو څخه وروسته (ختان وخيبا) او د (چاچان ولاف) د ريګستانو څخه چې جمعاً زرميله کيږی،

تير شول، د دی ځای نه وروسته د ګوبی صحرا شروع شول چې ډيره سوځوونکی هوا ئې درلوده شپه ګيا او اوبه ډير لږ ځايونو ته پکښې پيدا کيدی — خو فقط

دا ربو ځينی چينی هغه هم په ډيرو لږو ځايو کښې ليدل کيدی. نو هر چا چې به خيال درلود دا دی

صحرا نه تير شی بايد يوه هفته ئې د لاپ په منطقه کښې تيری کړی وای — او په دی ډيری تياری څخه

ئې حرکت کړی وای ځکه لکه چې د مخامخ ذکر کړل دا منطقه ډيره سوځوونکی ده چې حتی ځينی وخت ئې

داسی سوځيدونکی باد و نه درلودل چې په آن وخت کښې به ئې ژوندی شی هلاک کاوه نو په همدی علت وو

چې په ځينو ځايو کښې هيڅ ذی روح پکښې نه وو. پولوګانو په دی صحرا کښې ډيری عجيبی ژليدی چې د هغو

څخه يوه داستانونو داستکليتونو ليدل وو — فکر کيږی د هغه انسانان وه چې د دی صحرا څخه د تيريدو په

وخت کښې مړه او يوازی ئې هډوکی پاته شويدی.

پولوګان د دې صحرا څخه

په يوه مياشت کښې تير شول او (تون هوانګ) ته ورسيدل. چې د هغه وخت د لويو مذهبي

مرکزو څخه وو.

د دی ښار د تيريدو نه وروسته (کنچوا سفچو) ته ورسيدل چې د

چين د لوی ديوال ته نږدې موقعيت لری. بيا له هغه لانچو ته ورسيدل چې ورژيدو د باب ته نږدې يوه ډيره ښکلی

منطقه وه نو همدغه ځای دی چې خپل خطرا لسير ته تغير ورکوی او مخ په پيکينګ حرکت کوی. په لاره کښې د قوبلای خان د سپاه د احترام

او څه داغلي سره مخامخ کېږي. بیا نو د قوبلای خان د دربې استوګنځي ته چې د پیکینګ څخه

نږدې سوه میله لیرې ده، ورځي هلته قوبلای خان د دربې په عام محضر کې منې. او دوی هم د احترام په خاطر

ځورازي د معمول سره سم سجده ورته کوي چې دا یو قسم د ادابو څخه و.

قوبلای خان ډیر خوښېږي چې دده او امر یې پر ځای کړی دی. دوی مقدس تیل ورته تقدیموي

د شپاڼو د تسلیمولو وروسته پوښتنې ورځېنې کوي. او همدغه ځای دی چې دوی شل کاله لا نور پکښې پاتې کېږي.

## د قوبلای خان ده وبې په قصر کښې:

وختې چې پولوګان د قوبلای خان د دربې د قصر ته ور سیدل په دې وخت کښې قوبلای د ۹۵ کالو

او د سلطنت څخه یې پوره (۱۵) کاله تیر یدل که څه هم دی د چینایانو د مدنیت تر تاثیر لاندې راغلی،

خو بیا هم د مغولي خاصیت نو درلود نکی وو. د سپورت سره یې زیاته علاقه درلوده، او ښه

ښکاري هم زده وو سره لدې ظریف سړی هم وو هیڅ د مغولانو وحشي عادت نه پکښې لیدل کېدی

علاقه یې درلوده چې ښه ژوند ولري او په ښه ښایسته ځای کښې اوسېږي، لکه چې ده یو د دربې لپاره یو قصر په (شانتو) کښې

درلود چې ډیر لوی باغ پکښې وو د دغه باغ او قصر شاوخوا دوس میله احاطه درلوده. داسې باغ یې وو

چې تخیل یې هم اسانه کار نه دی په دې باغ کښې د هغه وخت هر قسم ګلان، مرغان (البته ښایسته مرغان)

وحشي حیوانات او داسې نور لیدونکي یې داسې ډول پکښې ایښودل شوي وه چې انسان د هغو

د لیدو څخه د حیرت ګوته په غاښ کښې نیول.

قصر یې د مرمر څخه جوړ شوی

او ټول د سرو زرو نقاشۍ پکښې شوې وه، لکه چې وایي د دوی په قصر کښې ځینې هغه طلا کاري شوې وه د اندازې

څخه وتلې وه، هغه طلا او جواهرات په داسې ډول پکښې ایښودل شوي وه چې انسان یې د لیدو څخه بالکل

په حیرت کښې پاتې کېدی.

قوبلای خان د اسانو سره هم زیاته علاقه درلوده لکه چې وایي

یوازې دده د سپینو آسانو شمېر لس زرو ته رسیدی. د ده خوراک سره یې هم علاقه درلوده او د هغو

حیوانانو شیدې یې هم خوړلې په دې ډول چې اول به یې هغه د کوټې په شراب تبدیلول او پس له هغه به نو د څښلو

لپاره آماده کېدل. هغه وخت چې به قوبلای خان په قصر کښې ډوډۍ د سره ملګرو تعداد چې به په قصر

کښې وه ۶۰۰۰ تنو ته رسیده چې هلته به د هر یوه لپاره د شرابو د سرو زرو جام پروت وو، هغه وخت چې به قوبلای خان د شرابو په څښلو

پیل شروع کولو به ساز هم شروع کېدی. تر هغه لحظې پورې چې ده به د دوستۍ غوږ تر سندرو تیراوه. پس له

دې چې به ده شراب د څښل پیل نو د درباریانو ته اجازه وه چې د شرابو په څښلو شروع وکړي. مارکو پولو د قصر

د شراب څښلو په اړه پوره او حیرت آوره خاطره په دې ډول تشریح کوي:

یو ورځ د قوبلای په قصر کښې د

شرابو مجلس جوړ و چې د هر میلمه و مخ ته په د کوټې د شرابو یو ډک جام پروت وو، که به چیرې جام ته ورو پروت او

یا به یې جام تش سو نو به په یوه محض اشاره سره نو ګران او پیشخدمتانو هغه جام ډک کاوه او یا به یې جام ورته راوړه

یو وخت کښې یو ملنګ غوندې مسکین سړی تر شا ناست و چې مخ ته یې جام نه وو پروت په دې وخت کښې قوبلای خان ورته

ګرشوا او یوه پیشخدمت ته یې امر وکړ چې جام ورته وړاندې کړي، مګر ملنګ وویل چې د هغه لاس رسۍ پر ته شراب د هغه

لیرې څخه دا اخیستلای شم، نو هغه وو چې د شرابو جام چې لیرې پروت و د اشاره وکړه د شرابو جام په هوا کښې حرکت

وکړ تر څو چې جادوګر ملنګ لاس ته یې ځان ورساوه.

ښایي محترم لوستونکي دغه پېښه یو

دروغ وبولي مګر مارکو پولو په دې ځای کښې ډیر تاکید کوي او وایي چې دا پېښه یې په خپلو سترګو باندې

لیدلې ده.

(جیزن دار یو فرانسوي پښه پیوند وانکي هم دا خبره تائید وي)

(نور بیا)

# د مضامینو فهرست

KANDAHAR
MONTHLY MAGAZINE
OFFICE
PRESS DEPARTMENT
KÀNDAHAR· AFGHANISTAN
EDITOR ABDUL KARIM TALIB
1974
GOVERNMENTAL PRESS

دکندهار دولتی مطبعه